# زَادُ الطَّالِبِیْنَ
# مِنْ
# کَلَامِ رَسُوْلِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ


ترتیب و تألیف:

محمّد عاشق الٰہی البرنی

ترجمہ ، تخریج و تحقیق

ابوسلمان سراج الاسلام حنیف



دارالقرآن والسنة

ہوسئی ، شہبازگڑھی ، مردان



# زاد الطالبين

من

کلام رسول رب العلمين

ترتیب وتالیف

محمد عاشق الٰہی البرنی

ترجمہ، تخریج وتحقیق

ابو سلمان سراج الاسلام حنیف

کتاب: ______ زاد الطالبین (پښتو)

ترجمه کوونکی: ______ ابو سلمان سراج الاسلام حنیف

د چاپ کیدو تاریخ: ______ ستمبر ۱۹۹۸ء

خوروونکی: ______ دار القرآن والسنة

کاتب: ______ طاهري خوشنویس نیو اډه مردان

تعداد: ______ یو زر ۱۰۰۰

قیمت: ______ ۳۵، روپۍ

د موندلو ړکونه: ______

۱:- دار القرآن والسنة ـ هوسۍ ـ شهباز ګړهی ـ مردان

۲:- المکتبة القاسمیة ـ امبیله روډ ـ رستم ـ مردان

۳:- دار الکتب والتجلید سګندړی روډ پار هوتی ـ مردان

۴:- طاهري خوشنویس یوسف مارکیټ نیو اډه ـ مردان

# بسم الله الرحمن الرحيم

## اَلْحَمْدُ[1] لِلّٰهِ الَّذِیْ تول صفتونه د خدای لوړ خاص هغه الله لره دی شَرَّفَنَا[2] چه مونږ له ئې عزت راکړیدے عَلٰی سَآئِرِ[3] الْاُمَمِ[4] په ټولو امتونو باندې بِرِسَالَةِ[5] مَنْ په رالیږلو د هغه رسول اِخْتَصَّهٗ[6] چه هغه ئې خاص کړیدے مِنْ بَیْنِ الْاَنَامِ[7] په ټولو خلقو کښ

---

۱ (الحمدُ) د فضیلت د وجې تعریف کول ـ حَمِدَهٗ (باب سَمِعَ) حَمْدًا وَمَحْمَدًا ـ حَمِدْتُ اِیَّاكَ اللّٰهَ تا ته م د الله تعریف اوکه ـ

۲ شرّفه، تعظیم کول ـ عزت کول شَرُفَ (باب کرُم) شَرَافَةً : عزت مند کیدل. اوچت درجه حاصلول شَرَفَهٗ (باب نصر) شَرْفًا په عزت او درجه کښ په چا باندې زورور کیدل او غالب کیدل شَرِفَ (باب سمع) شَرَفًا اوچتیدل.

۳ (سائر) اسم فاعل. باقی ځیز ته ویلے شی ـ سَئِرَ (باب سمع) سَأْرًا الشيءُ ـ باقی کیدل. سَائِرُالشَّیْءِ او السَّائِرُمِنَ الشَّیْءِ د واره قسمه لوستلے شی او د ټولو په معنیٰ استعمالیږی

۴ (الاُمَمُ) د (امّت) جمع ده، چه لے او جماعت ته ویلے شی

۵ (رِسَالَةٌ) بفتح الراء وکسرها پیغام ـ پیغام اورل ـ خط. رسالات او رسائل ئې جمع دی.

۶ (اِخْتَصَّهٗ) بِالشَّیْءِ خاص کول . په قرآن مجید کښ راغی چه، وَاللّٰهُ یَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ یَّشَآءُ (سورة البقرة ۲: ۱۰۵) او الله تعالیٰ خاص کوی په خپل رحمت سره، چا له چه اوغواړی اِخْتَصَّ بِالشَّیْءِ د خاص کیدلو په معنیٰ راځی ، خَصَّ (باب نصر) خَصًّا فُلَانًا بِالشَّیْءِ خاص کول، خصوصیت ورکول ـ خَصَّهٗ بِالْوُدِّ: هغه سره ئې مینه اوکړه ـ خَصَّ الشَّیْءَ لِنَفْسِهٖ خپل ځان لره یو ځیز مخصوص کول ـ خَصَّ (باب سمع) خَصَاصَةً : محتاج کیدل او د وینه وَلَوْکَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ (الحشر ۵۹: ۹) د ے

۷ (اَنَامٌ) او آنامٌ (بالقصر وبالمد) مخلوق ـ

بِجَوَامِعِ الْكَلِمِ په مختصرو خبرو بانـدې وَجَوَاهِرِ الْحِكَمِ او په قیمتي حکمتونو بانـدې صَلَّى اللهُ تَعَالىٰ عَلَيْهِ رحمت د الله تعالىٰ دې وي په هغه بانـدې وَعَلىٰ اٰلِهٖ او د هغه په اولاد

له (جوامع) د (جامع) جمع دہ، اَلْكَلَامُ الْجَامِعُ هغه كلام ته وئيلے شي چه د الفاظو لحاظ سره مختصر او د مطلب لحاظ سره ډير وسيع (اَرَت بيړدے) وي جَمَعَ (باب فَتَحَ) جمعًا التفرق: يوځائے كول. جمع كول.

له اَلْكَلِمُ (بفتح الكاف وكسر اللام) د كَلِمَةٌ جمع ده، هغه د معنىٰ نه ډك لفظاته وئيلے شي چه انسان ئے وائي، خطبے او قصيدے ته هم كلمةٌ وائي. د دے جمع كلماتٌ هم راځي. ځنيلـه معنىٰ ئے زخمي كول دي. كَلَمَ (باب نصر، ضرب) كلمًا.

له جَوَاهِرُ جمع د دے د جَوْهَرَةٌ. قيمتي كانړے. هره هغه كيڼه چه د هغے نه څه قيمتي څيز اوباسلے شي. جَوْهَرُ الشَّيْءِ: د يو څيز اصليت او روح. جوهري د د ينه وتلے د سے. هغه چاتا جوهري وئيلے شي چه هغه جوهر جوړوي يا ئے خرڅوي.

له اَلْحِكَمُ (بكسر الحاء وفتح الكاف) د حِكْمَةٌ جمع ده. عدل. علم او هوښيارتوب ته وئيلے كيږي. هغه خبرے او كارته هم حكمة وئيلے كيږي چه د حق موافق وي. لكه چه په قرآن كښې دي ومن يؤت الحكمة فقد اوتي خيرًا كثيرًا (البقرة ۲: ۲۶۹) حَكُمَ (باب كرم) حُكْمَةً هوښيار كيدل.

له صلّى د صلوٰة نه ماخوذ دے. څه تعريف كولو ته وئيلے شي. مراد ئي معنىٰ ئے رحمت ليږل دي. صلّىٰ صلوٰةً. مونځ كول صَلِيَ (باب سمع) صلیٰ په اور كښې سوزول لكه تصلىٰ نارًا حامية (الغاشية ۸۸: ۴)

له تعالىٰ. اوچتيدل. لوړكيدل. تعالت المرأة من نفاسها: پاكيدل. علا (باب نصر) عُلُوًّا علا النهارُ: ورځ راختل. اوچتيدل. عَلِيَ (باب سمع) علاءً. اوچتيدل. علىٰ فلان فِي الْمَكَارِمِ په درجه كښې پورته كيدل.

له اٰل: اصلي معنىٰ ئے سراب (د پير يانوتنور) ده اٰلُ الرجل د اهل وعيال استعمال صرف په اشرافو بانـدې كيږي. پد دے اٰل الحائك يا اٰل الاسكاف وئيل صحيح نه دي. هلته د دے لفظ مجازي معنىٰ مراد ده. يعنې پيروي كونكي. د دے تصغير اُوَيل راځي لكه چه د اَهل تصغير اُهَيل راځي.

**وَصَحْبِهٖ**[۱] او په هغه په ملګرو باندې **وَبَارِكْ**[۲] **وَسَلِّمْ**[۳] او برکت او سلامتيا دې وي

**مَا نَطَقَ**[۴] **اللِّسَانُ**[۵] ترکومې چه بيانوونکې شي ژبه **بِمَدْحِهٖ**[۶] تعريف د هغه **وَنَسَخَ**[۷] **الْقَلَمُ**[۸]

او ليکل کوونکې شي قلم

---

۱ صَحْبٌ: د رَكْبٌ په وزن د صاحبٌ جمع دی، ملګرې، يوځائې ژوند تير ونکې، مالك، لکه صاحِبُ الدّار امير او حاکم لکه صاحب الجيش. د دې جمع صُحْبَةٌ هم راځي لکه چه د فَارِهٌ جمع فُرْهَةٌ راځي، صِحَابٌ ئې هم جمع راځي. لکه چه د جائعٌ جمع جياعٌ راځي. صُحْبَانٌ ئې هم جمع راځي لکه چه د فَارِسٌ جمع فُرْسَانٌ راځي. اصحابٌ ئې هم جمع راځي لکه چه طاهرٌ جمع اَطْهَارٌ دی او صَحَابَةٌ او صِحَابَةٌ ئې هم جمع دی أَصَاحِيبُ ئې جمع الجمع دے. صَحِبَ (باب سمع) صُحْبَةً: يوځائې کيدل، دوستي کول، يوځائې کيني ژوند تيرول.

۲ بَارِكْ: د خيرا چولو دعا کول. رضا کيدل. بَارَكَ اللّٰهُ فِيْكَ وَلَكَ. خيرا چول. بَرَكَ (باب نصر) پرېوتل او تيريدل او اوښ کيناستل.

۳ سَلِّمْ عَلَيْهِ. سلام عليك کول. سَلَّمَهُ اللّٰهُ مِنَ الآفة. بچ کول. محفوظ کول. سَلَّمَ بِهٖ وَاِلَيْهِ، رضا کيدل. فرمانبردار کيدل. سَلِمَ (باب سمع) سَلَامَةً، نجات مندل. خلاصے موندل.

۴ نَطَقَ (باب ضرب) نُطْقًا ومنطقًا: وينا کول. واضحه خبره کول. وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى (النجم ۳:۵۳) او هغه د خپل خواهش نه خبرے نه کوي.

۵ اللِّسَانُ: ژبه. لغت. د خبرو کولو آله. لسان العرب. د عربو ژبه. لسانُ القومِ. د قوم ترجماني کونکے لسانٌ فَصِيْحٌ وَفَصِيْحَةٌ: د هغه ژبه فصيحه ده. دا مؤنث او مذکر دواړه استعماليږي. ليکن اکثر مذکر استعماليږي. چه کله مذکر او ګڼلې شي نو جمع ئې لُسُنٌ. لِسَانٌ او اَلْسِنَةٌ راځي. او چه کله مؤنث او ګڼلې شي نو بيا ئې جمع اَلْسُنٌ راځي.

۶ بِمَدْحِهٖ مَدَحَهٗ (باب فتح) مَدْحًا: تعريف کول. مَدَحْتُ اللُّؤْلُؤَ: ما د ملغلرو تعريف او کړو. خطيب تبريزي والي چه مدح په اصل کښې د اِمْتَدَحَتِ الْاَرْضُ نه وتلې دے چه د هغه معنٰی ده وسيع کيدل. فراخه کيدل. پدې وجه د مَدَحْتُهٗ معنیٰ به دې، په لويه پيمانه د چا تعريف کول.

۷ نَسَخَ (باب فتح) نَسْخًا: زائله کول. ورانول. باطلول. نَسَخْتُ حُكْمَهٗ بِحُكْمِ فُلَانٍ: د فلاني په حکم م د هغه حکم منسوخ کړو. د نَسَخَ بله معنیٰ ده ليکل. نقل کول. عرب وائي نَسَخْتُ كِتَابِيْ مِنْ كِتَابِ فُلَانٍ، ما خپل کتاب د فلاني د کتاب نه ټکي په ټکي نقل کړو. عرب دا هم وائي: مَا نَسْخَةٌ بَلْ مَسْخَةٌ، هغه نقل کړې شوې نه بلکه وران، وېجاړ کړيد شوے.

۸ اَلْقَلَمُ د خط ليکلو آله. تل چه او تراشلې نو هغه قلم شي. د تراشلو نه مخکښې ورته بَرَاعَةٌ او قَصَبَةٌ وائي. جمع ئې اَقْلَامٌ او قِلَامٌ راځي. د جوارئ غشي ته هم قلم وئيلې شي.

أَمَّا بَعْدُ[1] پس د دې (حمد وصلوٰة) نه خبره داده : فَهٰذَا كِتَابٌ وَجِيْزٌ[2]
چه دا یو مختصر کتاب دې مُنْتَخَبٌ[3] راغونډ کړې شوید ې مِنْ كَلَامِ
الشَّفِيْعِ[4] الْعَزِيْزِ[5] د خبرو د (هغې نبي نه) چه سفارش کوونکے او عزتمند دې اِقْتَبَسْتُهٗ[6]
دا ما حاصل کړې دې مِنَ الْكِتَابِ اللَّامِعِ[7] الصَّبِيْحِ[8] د هغې کتاب نه چه رڼا والا او ښائسته دې

---

[1] بَعْدُ ظرف زمان دې. د وروستو الی په معنیٰ. جِئْتُ بَعْدَ الْفَجْرِ زۀ د صبا (ختلو نه) روستو راغلم د دې استعمال اضافت سره کیږي.

[2] وَجِيْزٌ د قتيل په وزن. مختصر. أَمْرٌ وَجِيْزٌ. كَلَامٌ وَجِيْزٌ : مختصر کار او لنډ شان خبره. وَجَزَ (باب ضرب، کرم) وَجْزًا، الْكَلَامَ : مختصر کول، کمې خبرې کول.

[3] مُنْتَخَبٌ : غوره کړې شوید ې، چونړلے شوې، انړود لے شوې. اِنْتَخَبَ الشَّيْءَ - انړول په کنړ وخیز ولو کښې یو غوره کول. نَخَبَ (باب نصر) نَخْبًا. فُلَانٌ الشَّيْءَ، راخکل، غوره حصه اخستل

[4] اَلشَّفِيْعِ : سفارش کوونکے، د شُفْعَه حق لرونکی ته هم و ئیلے شی. جمع ئې شُفَعَاءَ راځي، شَفَعَ (باب فتح) شفاعةً. شَفَعَ له، فِيْهِ، اِلَيْهِ : سفارش کول.

[5] اَلْعَزِيْزِ : شريف، قوي، عزتمند. دا په اسماء حسنیٰ کښې هم داخل دې. او د مصر او د اسکندریې د حاکمانو لقب هم دې. جمع ترې عِزَازٌ، اَعِزَّةٌ او اَعِزَّاءُ راځي. عَزَّ (باب ضرب) عِزًّا وَعِزَّةً غالب کیدل، زور آور کیدل. عَزَّ (باب نصر) عَزًّا : قوي کیدل.

[6] اِقْتَبَسْتُهٗ : د اقتباس نه دې. استفاده کول، حاصلول، زده کړه کول. اِقْتَبَسَ مِنْهُ الْعِلْمَ : د هغه نه ئې علم حاصل که. قَبَسَ (باب ضرب) قَبْسًا. قَبَسَ مِنْهُ النَّارَ : د هغې نه ئې د اور شُغله (شوړه) حاصله کړه

[7] اَللَّامِعِ : رڼا والا، پړق تیندره. لَمَعَ (باب فتح) لَمْعًا وَلَمَعَانًا، لَمَعَ الْبَرْقُ برق پړوق شو. جمع ئې لُمَّعٌ راځي. کله چه او ئیلے شي چه : مَا بِالدَّارِ لَامِعٌ. نو مطلب ئې دا وي چه : په کور کښې هیڅوک نیشته.

[8] اَلصَّبِيْحِ : رڼا والا، پړقیدنده. ښائسته. صَبِحَ (باب سمع) صبحًا. صَبِحَ الشَّعْرُ او الْحَدِيْدُ : شعر یا اوسپنه ښائسته او ښکلے شوه، پړق ئې او وهلو. صَبُحَ (باب کرم) صَبَاحَةً. صَبُحَ الْوَجْهُ مخ روښن شو. صَبُحَ الْغُلَامُ : ماشوم ښکلے شو. د ده جمع صِبَاحٌ ده او د صَبِيْحَةٌ جمع هم صِبَاحٌ راځي.

**اَلْمَعْرُوْفُ**[1] چه هغه مشهور دے **بِمِشْكٰوةِ**[2] **الْمَصَابِيْحِ**[3] په تاخ د ډيوو **وَسَمَّيْتُهٗ**
او ما دے له نوم کیخود **زَادَ**[4] **الطَّالِبِيْنَ**[5] د طالبانو د لارے توښه **مِنْ كَلَامِ رَسُوْلِ**
**رَبِّ**[6] **الْعٰلَمِيْنَ** د مخلوقاتو د رب د رسول د کلام نه **اَلْفَاظُهٗ قَصِيْرَةٌ**[7] د دے الفاظ
واړه دی **وَمَعَانِيْهِ**[8] **كَثِيْرَةٌ** او معنے ئے ډیرے دی **يَتَنَضَّرُ**[9] **بِهٖ** تر وتازه کیگی به
په دے باندِ **مَنْ قَرَأَهٗ** هغه څوك چه دا اولولی **وَحَفِظَهٗ** او دا یاد کړی

---

۱ـ اَلْمَعْرُوْفُ: (اسم مفعول) مشهور، هغه څيز چه په شريعت کښ غوره وی۔ هغه څيز چه زړه ته په هغ تسلی او سکون میلاویکی ۔خير، رزق، احسان ۔ عَرَفَ (باب ضَرَبَ) عِرْفَةً د عِرْفَانًا پیژندل۔

۲ـ مِشْكٰوة: تاخ د ډيوو دیکخو دلو ځائے۔ مَثَلُ نُوْرِهٖ كَمِشْكٰوةٍ فِيْهَا مِصْبَاحٌ (سورة النور ۲۴:۳۵) حالت د توحید (دالله تعالى په زړه د مؤمن کښ) په شان د حال دیو تاخ دے چه په هغ کښ ډيوه وی۔

۳ـ اَلْمَصَابِيْحُ: د مصباح جمع ده۔ ډيوه، لالټین۔

۴ـ زَادٌ: دلارے او د سفر توښه، جمع ئے اَزْوَادٌ او اَزْوِدَةٌ راځی۔ زَادَ (باب نَصَرَ) زَوْدًا۔ زَادَ الرَّجُلُ د سړی ځان له توښه تیارول۔ ځان څخه توښه اوړل۔

۵ـ طَالِبِيْنَ: د طَالِبٌ جمع مذکر سالم دے۔ طلب کونکی۔ طَلَبَ (باب نَصَرَ) طَلَبًا۔ طلب الشيءُ: څه څيز تلاش کول، لټول۔ طَلَبَ اِلَيْهِ: چاته راغب کيدل۔ د علم طلب کونکی ته طالبُ العلم وائی۔

۶ـ رَبٌّ: مالك، سردار، پالنه کونکے۔ په اسماء حسنى کښ شامل دے۔ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ: د هر څيز مالك جمع ئے اَرْبَابٌ او رُبُوْبٌ راځی۔ رَبَّ (باب نَصَرَ) رَبًّا۔ رَبُّ الْقَوْمِ: د قوم مشر او سردار، رَبُّ الشَّيْءِ د يو څيز جمع کونکے او مالك۔

۷ـ قَصِيْرَةٌ: د طَوِيْلَةٌ مخالف لفظ دے۔ واړه الفاظ، وړوکے قد۔ جمع ئے قِصَارٌ، قَصِيْرَاتٌ او قَصَائِرُ راځی۔ اَلْاَحَادِيْثُ الْقِصَارُ، هغه خبرے چه لنډے او کالے دی۔ قَصُرَ (باب كَرُمَ) قِصَرًا: وړوکے کيدل۔

۸ـ مَعَانِيْ: د معنى جمع ده۔ مقصود، مطلب، د مَعْنَى الْكَلِمَةِ مطلب دے: هغه څيز چه کلمه په هغ دلالت کوی۔ مَعْنَى الْكَلَامِ: د کلام مضمون۔

۹ـ يَتَنَضَّرُ: تر او تازه کيدل۔ نَضَرَ (باب نَصَرَ، كَرُمَ) نَضْرَةً، نُضُوْرًا، نَضْرًا، نَضَارَةً: تر او تازه کيدل خوشحاله کيدل۔ وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ (القيامة ۷۵:۲۲) څه مخونه به په دغه ورځ تر وتازه دی۔

وَيَبْتَهِجُ بِهٖ[1] او خوشحالیږی به پدے باندِ مَنْ عَلِمَهٗ هغه څوک چه دا زده کړی وَدَرَسَهٗ او دا اولولی وَرَتَّبَتُهٗ او ما دا له ترتیب ورکړیدے عَلَى الْبَابَيْنِ[2] په دوو بابونو کښی يَعُمُّ[3] نَفْعُهُمَا چه عامه شی نفع د دے فِي الدَّارَيْنِ[4] په دواړو جهانو کښی وَاللّٰهَ أَسْئَلُ او خاص د الله تعالیٰ نه سوال کوم اَنْ يَّجْعَلَهٗ خَالِصًا چه دا خالص کړی لِوَجْهِهِ[5] الْكَرِيْمِ د خپلے عزتمند رضا د پاره وَسَبَبًا او دا ذریعه اوګرزوی لِدُخُوْلِ دَارِ النَّعِيْمِ[6] د پاره د داخلیدو د کور د آرام

---

[1] وَيَبْتَهِجُ : خوشحالیدل. بَهِجَ (باب سمع) بَهَجًا فهو بَهِيْجٌ وَمُبْهِجٌ. بَهْجَةُ اللَّوْنِ : د رنګ ښائسته کیدل.

[2] اَلْبَابَيْنِ : د بَابٌ تثنیه ده. جمع ئے اَبْوَابٌ راځی. دروازے ته د ویلے شی. بَابٌ مِّنَ الْكِتَابِ : د کتاب یو باب. په قرآن کریم کښی ئے جمع او واحد دواړه استعمال شوی دی، لکه وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا (سورة البقرة ۲: ۵۸) فَفَتَحْنَا اَبْوَابَ السَّمَآءِ بِمَاءٍ مُّنْهَمِرٍ (القمر ۵۴: ۱۱) بِسُوْرٍ لَّهٗ بَابٌ (الحدید ۵۷: ۱۳) بَابَ (باب نصر) بَوْبًا : دربان کیدل. بَوَّابٌ : دربان، څوکیدار.

[3] يَعُمُّ : عَمَّ (باب نصر) عُمُوْمًا. عَمَّ الشَّيْءُ : یو څیز عام کیدل. عَمَّ الْمَطَرُ الْاَرْضَ : په ټوله مزکه عام (پوشان) باران اوشو.

[4] اَلدَّارَيْنِ : د دَارٌ تثنیه ده. کور، مکان او د استوګنے ځائے، دا مونث استعمالیږی. او جمع یے دا سے راځی : اَدْوُرٌ، اَدْوُرٌ، دِيَارَةٌ، دِيْرَانٌ، دِيَارٌ، دُوْرٌ، دُوْرَانٌ، دُوْرَاتٌ، دِيَارَاتٌ، اَدْوَارٌ، اَدْوِرَةٌ. جَزَاكَ اللّٰهُ فِي الدَّارَيْنِ خَيْرًا : الله تعالیٰ دِ تا له په دواړو جهانو (دنیا او اخرت) کښی ښه بدله درکړی.

[5] لِوَجْهِهٖ : الوجه : مخ، د مخا مخ حصه، قصد، نیت، رضا منتیا، نفس یو څیز، ذات. جمع ئے اَوْجُهٌ، وُجُوْهٌ او اُجُوْهٌ راځی.

[6] اَلنَّعِيْمُ : آرام، مال، خوشحاله او مالداره سړی ته. رَجُلٌ نَعِيْمُ الْبَالِ ویلے شی. عطیے او فضل ته هم نَعِيْمٌ ویلے شی لکه نعیم الله. دار النعیم نه مراد جنت دے چه د ډیر آرام او د الله تعالیٰ د فضل ځائے. نَعَمَ (باب فتح. نصر. سمع) نِعْمَةً. نَعَمَ الرَّجُلُ : د سړی خوشحاله کیدل. نَعَمَ عَيْشُهٗ : د هغه ژوند ښه شو، آسوده حال شو.

فَاِنَّهٗ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ[۱][۲] ځکه چه یو الله هغه فراخ معافئ والا دے وَاِنَّهٗ ذُو الْفَضْلِ[۳] الْعَظِيْمِ[۴] او یو الله هغه خاوند دلوئ فضل دے۔

---

۱ه وَاسِعٌ : فراخه کیدل۔ پوره احاطه کونکے۔ په اسماء حسنیٰ کښې شامل دے۔ وَسِعَ (باب سمع، فتح، کرم) سَعَةً وَوُسْعًا : فراخه کیدل، راګیرول، ډیر ډیر ورکول۔ وَسِعَتْ رَحْمَتِيْ كُلَّ شَيْءٍ (الاعراف ۷ ، ۱۵۶) زما رحمت هر څیز ته شامل دے۔ وَسَعَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ رِزْقَهٗ، الله تعالیٰ هغوئ ته رزق فراخه ورکه۔

۲ه وَالْمَغْفِرَةُ : بښنه، معافی۔ غَفَرَ (باب ضرب) غَفْرًا وغُفْرَانًا۔ غَفَرَلَهُ الذَّنْبَ، پرده اچول۔ پټول معاف کول۔

۳ه اَلْفَضْلُ : احسان، ډیر والے، باقی (باب نصر، سمع)

۴ه اَلْعَظِيْمُ : لوئے۔ جمع ئے عُظَمَاءُ، عِظَامٌ، عُظْمٌ دی۔ عَظُمَ (باب کرم) لویدل۔

# اَلْبَابُ الْاَوَّلُ

د لومړي باب

## فِیْ جَوَامِعِ الْکَلِمِ، وَمَنَابِعِ الْحِکَمِ، وَالْمَوَاعِظِ الْحَسَنَةِ

په جامع خبرو ، د حکمت چینو اوپه ښائسته وعظونو کښ.

قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی:

(۱) اِنَّمَا الْاَعْمَالُ یقینًا (بدله) د شرعی عملونو بِالنِّیَّاتِ په ارادو بانډې ده.

---

۱ مَنَابِعُ: د مَنْبَعٌ جمع ده په وزن د مَفْعَلٌ، د اوبو د راختو ځائے، چینه. نَبَعَ (باب نصر، سمع، کرم) نَبْعًا و نُبُوْعًا و نَبَعَانًا: د چینې نه اوبه راوتل.

۲ اَلْمَوَاعِظُ: د مَوْعِظَةٌ جمع ده. وعظ او پند او نصیحت ته وئیلے شی. وَعَظَ (باب ضرب) وَعْظًا، عِظَةً: نصیحت کول، داسے خبرې کول چه هغې سره زړګے نرم شی، چاته د خبرے منلو او فرمان بردارئ حکم ورکول. قُلْ اِنَّمَا اَعِظُکُمْ بِوَاحِدَةٍ (سورة السبا ۳۴:۴۶) او وایه زه تاسو ته صرف د یو ے خبرے نصیحت کوم. واعظ: نصیحت کونکے. جمع ئے وَاعِظِیْنَ او وُعَّاظٌ ده.

۳ اَلْحَسَنَةُ: د صفت صیغه ده. د حَسَنٌ مؤنث دے. جمع ئے حِسَانٌ او حَسَنَاتٌ. خو د حَسَنٌ (مذکر) جمع صرف حِسَانٌ راځی. حَسُنَ (باب کرم، نصر) حَسُنًا: ښکلے کیدل، ښه کیدل.

۴ اَلنَّبِیُّ: "ی" او "همزه" د واړو سره لوستلے شی. د الله تعالیٰ استاذے، پیغام رارسونکے. جمع ئے اَنْبِیَاءُ او نبیّون راځی. د نَبَاءٌ (خبر) جمع اَنْبَاءٌ (خبرونه) ده. د تَنَبَّاءَ معنیٰ ده په دروغه د نبوّت دعوه کول.

۵ اَلنِّیَّاتِ: د نِیَّةٌ جمع ده. اراده، قصد او عزم ته وئیلے شی.

علامه ازهری لیکلی دی چه: د ا د ری، په تخفیف سره هم وئیلے شی یعنی نِیَةٌ دد ے جمع نِیَاتٌ راځی. نوی (باب ضرب) نواةٌ و نِیَّةٌ. نوی القَوْمُ مَنْزِلًا بِکَذَا: قوم د کوچیدلو او دیره کیدلو قصد اوکړو

وَاِنَّمَا لِامْرِئٍ[1] او یقیناً هر سړي ته به مسلاویکی مَا نَوٰی هغه چه ده ئې نیت کړی وی فَمَنْ نو هغه څوک كَانَتْ هِجْرَتُهٗ[2] چه وی هجرت د هغهٔ اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ د الله او د هغهٔ د رسول د (رضا) د پاره فَهِجْرَتُهٗ نو هجرت د دهٔ (منظور) دے اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ الله تعالیٰ او د هغه رسول ته وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهٗ او هغه څوک چه وی هجرت د هغه اِلٰى دُنْيَا د دُنیا د پاره يُصِيْبُهَا[3] چه هغه حاصله کړی اَوِ امْرَاَةٍ یا د ښځے د پاره يَتَزَوَّجُهَا[4] چه هغے سره واده اوکړی فَهِجْرَتُهٗ اِلٰى مَا هَاجَرَ اِلَيْهِ نو هجرة د دهٔ د هغه څيز د پاره دے چه دهٔ ورته هجرت کړے دے۔

---

تخریج: بخاری (۱، ۲۱، ۸ : ۱۷۵)، مسلم (۱۹۰۷)، نسائی (۷۵)، ابن ماجه (۴۲۲۷)، مشکوٰة (۱).

---

[1] امرئٍ: (امرؤٌ۔ په دے کښې همزهٔ د وصل زیات کړے شی نو هله لوستے شی۔ او د (ر) اعراب د آخری حرف د حرکت مطابق وی۔ په حالت رفعی کښې جَاءَ امرُؤٌ۔ په حالت نصبی کښې اِمرَأً۔ او په حالت جری کښې مَرَرْتُ بِامْرِئٍ لوستے شی۔ د دے کلمے خصوصیت دا دے چه د (ع) کلمے حرکت د (ل) کلمے د حرکت تابع وي۔ د دهٔ مؤنث اِمْرَأَةٌ راځی۔

[2] هِجْرَتُهٗ: وطن پریښودل۔ هَجَرَ (باب نصر) هَجْرًا وهِجْرَانًا: پریښودل، قطع تعلق کول

[3] يُصِيْبُهَا:۔ اَصَابَ الشَّيْئَ: یو څیز موندل۔ اَصَابَ مِنَ الشَّيْئِ: یو څیز اخستل، حاصلول۔ صَابَ (باب ضرب) صَيْبًا: ټهیک په نښه لګیدل۔

[4] يَتَزَوَّجُهَا: تَزَوَّجَ اِمْرَءَةً: نکاح کول۔

# الجملة الاسمية

② — اَلدِّيْنُ[۱] دين اَلنَّصِيْحَةُ[۲] (د) خيرخواهى (نوم دے)

بخاری ۱: ۲۲، مسلم ۱: ۴۲، نسائی (۴۲۰۰)، مشکوٰة (۴۹۶۶)۔

③ — اَلْمَجَالِسُ[۳] مجلسونه (به) بِالْاَمَانَةِ[۴] امانت سره وى

ابوداود (۴۸۶۹)، مشکاة (۵۰۶۳)

④ — اَلدُّعَاءُ[۵] د الله تعالیٰ نه غوختنه مُخُّ[۶] الْعِبَادَةِ دعبادت مغز (نَلے) دے۔

ترمذی (۳۳۷۱)، مشکاة (۲۲۳۱)۔ ددے حدیث سند کمزورے دے۔ ددے راوی ابن لهیعه دے اود هغه حافظه خرابه شوےوه۔ ددے حدیث صحیح الفاظ دادی؛ اَلدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ؛ د الله تعالیٰ نه حاجتونه غوختل عین عبادت دے۔ مسند احمد ۴: ۲۷۱، ترمذی ۳۲۴۷، مشکاة ۲۲۳۰۔

⑤ — اَلْحَيَاءُ حيا (كول) شُعْبَةٌ[۷] يوه لويه څانګه ده مِنَ الْاِيْمَانِ د ايمان

بخاری ۱: ۹، مسلم ۱: ۶۳، مشکاة (۵)۔

---

۱ اَلدِّيْنُ: طريقه، مذهب، ملّت۔ جمع ئے اَدْيَانٌ راځى۔

۲ اَلنَّصِيْحَةُ: خيرغوښتل۔ جمع ئے نصائح راځى۔ دخالص په معنىٰ هم استعماليږى۔ د تَوْبَةً نَصُوْحًا معنى ده: خالصه توبه؛ داسے توبه چه د هغے نه روسته دګناه د نه کولو وعده کاوى۔

۳ اَلْمَجَالِسُ: دمَجْلِسٌ جمع ده۔ دناستے ځائ او بيټهک نه وئيلے شى۔ جَلَسَ (باب ضرب) جُلُوْسًا: ناسته۔ ددے حديث پاتے ټکړه داسے ده؛ اِلَّا ثَلَاثَةَ مَجَالِسَ: سَفْكُ دَمٍ حَرَامٍ اَوْ فَرْجٌ حَرَامٌ اَوِ اقْتِطَاعُ مَالٍ بِغَيْرِ حَقٍّ۔

۴ اَلْاَمَانَةُ: امانت، جمع ئے امانات راځى۔ اَمِنَ (باب ضرب، سمع) اَمْنًا: اعتماد کول۔ يقين ساتل محفوظ ساتل۔

۵ اَلدُّعَاءُ: د الله تعالیٰ نه غوختل، سوال کول، جمع ئے دَعَوَاتٌ او اَدْعِيَةٌ ده

۶ مُخٌّ: دهډوکى مغز، نَلے، جمع ئے مِخَاخٌ او مِخَخَةٌ ده، د مَخَّخَ معنىٰ ده؛ دهډوکى نه نلے او باسل

۷ شُعْبَةٌ: شاخ، فرقه، ډله، ګوډر، کنده او نالئ۔ جمع ئے شُعَبٌ او شِعَابٌ راځى۔

⑥ — اَلْمَرْءُ (وی به) سړے د په قیامت کښې) مَعَ مَنْ د هغه چاسره اَحَبَّ

چهٔ دهٔ ورسره محبت وی -

بخاری ۸ ۴۸، ۴۹، مسلم (۲۶۴۰)، مشکاة (۵۰۰۸)۔

⑦ — اَلْخَمْرُ[1] شراب جِمَاعُ[2] الْاِثْمِ[3] ګناهونو ډیر جمع کونکے دے .

وَالنِّسَاءُ او ښځے حَبَائِلُ[4] الشَّيْطَانِ د شیطان جالونه دی . وَحُبُّ الدُّنْيَا

او دُنیا سره مینه کول رَأْسُ كُلِّ خَطِيئَةٍ د هرے ګناه جرړه دهٔ

مشکاة (۵۲۱۲)، امام منذری رح لیکلی دی چه دا روایت رزین نقل کړیدے خو موتږ دا د هغه په اصولو کښې (یعنی مآخذو کښې) نده لیدلے (الترغیب والترهیب ۳: ۲۵۷)

⑧ — اَلْاَنَاةُ[5] صبر (او برداشت) مِنَ اللهِ د الله تعالیٰ د طرفه دی وَالْعَجَلَةُ[6]

او تلوار کول مِنَ الشَّيْطٰنِ[7] د شیطان د طرفه دهٔ۔

مشکاة (۵۰۵۵)، ترمذی (۲۰۱۲)، امام ترمذی فرمائی: دا حدیث ضعیف دے . دده راوی عبد المهیمن بن عباس دے او د هغه د حافظے باره کښې محدثین خبرے کوی -

---

[1] اَلْخَمْرُ: د انګورو نه جوړ کړی شوی شراب - هر هغه څیز ته د ویلے شی چهٔ نشه راولی یاعقل زائله کوی . خَمَرَهٗ (باب نصر، ضرب) خَمْرًا: پټول . خِمَارٌ: لوپټه، پړونے .

[2] جِمَّاعٌ: (د جیم زیر او د میم شد سره) ډیر جمع کونکے . د جَامِعٌ مبالغه دهٔ . قِدْرٌ جِمَاعٌ: ډیره غټه

[3] اَلْاِثْمُ: ګناه، جرم، ناجائز کار . جمع ئے آثام راځی . اَثِمَ (باب سمع) اِثْمًا: ګناه کول . رَجُلٌ اِثْمٌ آثَامٌ، اَثِيْمٌ، اَثُوْمٌ: ګناه ګار سړے .

[4] حَبَائِلُ: د حِبَالَةٌ جمع دهٔ . ول، جال او دورے ته د ویلے شی . عرب وائی: اِحْتَبَلَهُ الْمَوْتُ بِحَبَائِلِهٖ: یعنی مرګ هغه په خپل جال کښې راګیر کړهٔ .

[5] اَلْاَنَاةُ: صبر، استقامت، وقار او انتظار . اَنِيَ (باب ضرب، سمع) اِنْيًا: انتظار کول .

[6] اَلْعَجَلَةُ: تلوار او تیزی کول . عَجِلَ (باب سمع) عَجَلًا وعَجَلَةً: جلدی کول . په قران شریف کښې راځی: لَا تُحَرِّكْ بِهٖ لِسَانَكَ لِتَعْجَلَ بِهٖ (سورة القيامة ۷۵: ۱۶)

[7] اَلشَّيْطٰنُ: شیطان، سرکش، نافرمانه . جمع ئے شیاطین دهٔ . شَيْطَنَ، شَيْطَنَةً وتَشَيْطُنَ شیطان کیدل .

⑨ــ اَلْمُؤْمِنُ مومن غِرٌّ[1] ساده کَرِیْمٌ (او) شریف وی وَالْفَاجِرُ[2] او کافر خَبٌّ[3] دهوکه مار لَئِیْمٌ[4] (او) رزیل وی۔

ابوداؤد (۴۷۹۰)، ترمذی (۱۹۶۴)، المستدرک (۱: ۴۳، ۴۴)، مشکاة (۵۰۸۵)۔
حافظ ابن حجرؒ په "اجوبة الحافظ" کښی ددے روایت په حقله لیکلی دی چه ددے دوه راویان حجاج بن فرافصة او بشر بن رافع ضعیفان دی۔ خو ددے باوجود دے روایت باندے د موضوع حکم نهٔ شی لګولے۔ ځکه چهٔ د موضوع کیدلو نښے پکښی نیشته ملا علی قاریؒ لیکلی دی: دا روایت موضوع دے (المصنوع صفحه ۱۵۱) خو البانی دنورو کثیرو شواهدو په وجه د احدیث صحیح کنړی۔ اوګوری الصحیحة ۲: ۶۴۴۔

⑩ــ اَلظُّلْمُ ظلم کول ظُلُمَاتٌ[5] ګڼړے تیرے دی یَوْمَ الْقِیٰمَةِ د قیامت په ورځ

بخاری ۳: ۱۶۹، ترمذی (۲۰۳۰)، مشکاة (۵۱۲۳)۔

⑪ــ اَلْبَادِئُ[6] وړاندے کیدونکے بِالسَّلَامِ[7] په سلام کښی بَرِیْئٌ[8] خلاص دے

---

[1] غِرٌّ: (د "غ" په زیر سره) ناتجربه کار، بوله۔ د چاچه تجربه نهٔ دی۔ عرب وائی، شَابٌّ غِرٌّ وَ شَابَّةٌ غِرٌّ وغِرَّةٌ۔ جمع ئے (اغرار) ده۔

[2] اَلْفَاجِرُ: دحق نه تجاوز کونکے، ډیر ګناه کونکے، زناکار، دروغژن۔ فَجَرَةٌ او فُجَّارٌ ئے جمع ده۔ فَجَرَ (باب نصر) فُجُوْرًا: تجاوز کول، ګناه کول۔

[3] خَبٌّ: (د "خ" د زور سره)۔ مکار، دهوکه باز۔ خُبُوْبٌ ئے جمع ده۔ خَبَّ (باب سمع) خَبًّا وخِبًّا، مکار کیدل، دهوکه باز کیدل۔

[4] لَئِیْمٌ: کمینه، ذلیل، شوم، رزیل۔ لِئَامٌ، لُؤَمَاءُ او لُؤْمَانٌ ئے جمع ده۔ لَؤُمَ (باب کرم) لُؤْمًا: کمینه او ذلیل کیدل۔

[5] ظُلُمَاتٌ: د ظُلْمَةٌ جمع ده۔ تیارهٔ۔ ددے جمع ظُلُمَاتٌ او ظُلَمٌ هم راځی۔ ظَلِمَ (باب سمع) ظَلْمًا۔ ظَلِمَ اللَّیْلُ شپه توره شوه

[6] اَلْبَادِئُ: اسم فاعل دے، وړاندے کیدونکے۔ بَدَأَ (باب فتح) بَدْءً۔ بَدَءَ الشَّیْئَ وبَدَأَ بِهٖ: شروع کول وړاندے کیدل۔ بَدَءَ متعدی او اِبْتَدَأَ لازمی دے۔

[7] اَلسَّلَامُ: د تَسْلِیْمٌ نه اسم دے لکه چهٔ د تکلیم نه اسم کلام دے۔

[8] بَرِیْئٌ: (باب سمع، فتح، کرم) بُرْءً او بُرُوْءً او بَرَاءَةً: بری کیدل، خلاصے موندل۔ بَرِئَ مِنَ الْعَیْبِ: د عیبه خلاصیدل۔ بَرِئَ مِنَ الْمَرَضِ: د بیمارئ نه ښه کیدل، صحت موندل، روغیدل۔

مِنَ الْكِبْرِ د لویئی نه۔

کنز العمال (۲۵۲۶۵)، مشکاة (۴۶۶۶)۔

(۱۲) ــــ اَلدُّنْيَا دنیا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ د مؤمن جیل خانه ده وَجَنَّةُ الْكَافِرِ

او جنت دے د کافر

مسلم (۲۹۵۶)، ابن ماجه (۴۱۱۳)، مشکاة (۵۱۵۸)۔

(۱۳) ــــ اَلسِّوَاكُ[۱] مسواک (کول) مُطَهَّرَةٌ[۲] پاکونکے دے لِلْفَمِ[۳] خولے لره وَمَرْضَاةٌ[۴]

او رضا مندتیا ده لِلرَّبِّ د رب.

بخاری ۳: ۴۰، نسائی (۵)، مشکاة (۳۸۱)

(۱۴) ــــ اَلْيَدُ[۵] الْعُلْيَا[۶] پاسنۍ لاس (ورکونکے) خَيْرٌ غوره دے مِنَ الْيَدِ السُّفْلٰى[۷]

---

۱ه اَلسِّوَاكُ: (د سین زیر سره) مِسواک۔ د غاښ د صفاکولو څیز۔ جمع ئے سُوُكٌ راځی او د مسواک جمع مَسَاوِيكُ ده. سَاكَ (باب نصر) مَښل. عرب وائی سَاكَ الْاَسْنَانَ بِالْعُودِ غاښونه ئے په څیز اومښل

۲ه مُطَهِّرَةٌ: د صفائی اله. جمع ئے مَطَاهِرُ ده. طَهَّرَ (باب فتح) طُهْرًا وَطَهَارَةً پاکول، وطهر (باب نصر) طُهْرًا وَطَهَارَةً: پاکول۔

۳ه لِلْفَمِ: خوله. په اصل کښی فُوهٌ دے ځکه ئے جمع اَفْوَاهٌ ده. فَاهَ (باب نصر) فَوْهًا: په خوله وینا کول

۴ه مَرْضَاةٌ: د خوش حالئ حاصلولو ځائے. رَضِيَ (باب سمع) رِضًى: رضا کیدل، خوش حاله کیدل

دلته دا مصدر میمی هم کیدے شی د مُطَهِّرٌ (پاکونکی) په معنیٰ۔

۵ه اَلْيَدُ: لاس. دده اصل يَدْيٌ دے. دا همیشه مؤنث استعمالیږی، جمع ئے اَيْدِي او اَيَادِي

ده۔

۶ه اَلْعُلْيَا: (د "ع" په پیش سره) اوچت، هر پورته او بره ځائے، د اَعْلٰى مؤنث دے. شَفَةٌ عُلْيَا: پورتنۍ شونډه. علیٰ (باب نصر) عُلُوًّا وعَلِيَ (باب سمع) عَلَاءً: اوچتیدل۔

۷ه اَلسُّفْلٰى: (بضم السین) د اَسْفَلُ مؤنث دے. کوز، لاندې. سَفَلَ (باب نصر، سمع، کرم) سُفُولًا: کوزیدل، ښکته کیدل، لاندې کیدل۔

ولا سند یې لاس نه۔

بخاري ۲: ۱۳۹، ۷: ۸۱، ۸: ۱۱۶، مسلم (۱۰۳۴) مشکاة (۱۸۴۳)۔

⑮ — اَلْغِیْبَةُ[1] غیبت کول اَشَدُّ سخت (ګناه) دے مِنَ الزِّنَا[2] د زنا کولو نه

مشکات (۴۸۷۴)، الترغیب والترهیب ۳: ۵۱۱، شعب الایمان ۵: ۳۰۶۔

دا روایت موضوع دے۔ غیبت ډیره لویه ګناه ده، خو زنا نه لویه نه ده قرآن مجید کښې زنا ته فَاحِشَةً (بے حیائي) او مَقْتًا (هلاکت) او سَاءَ سَبِیْلًا (بده لار) ویلے شوي دي۔

بله دا چه د زنا کولو شریعت کښې سزا شته چه هغه یا خو سل درے وهل دي او یا رجم دے۔ او حال دا دے چه د غیبت د پاره څه داسے سزا نه ده مقرر۔

حافظ هیثمي وائي دده په سند کښې عباد بن کثیر ثقفي لوے راوي دے او هغه متروک دے۔ (مجمع الزوائد ۸: ۹۲)

امام ابن ابي حاتم رازي فرمائي، دا حدیث هیڅ اصل او بنیاد نه لري (علل الحدیث ۲: ۳۱۹)

امام بیهقي لیکلي دي، دا د سفیان بن عیینه وینا ده۔ (شعب الایمان ۵: ۳۰۶، مرقاة ۸: ۶۱)

⑯ — اَلطُّهُوْرُ صفائي (کول) شَطْرُ[3] الْاِیْمَانِ د ایمان حصه ده۔

مسلم (۱: ۲۰۳)، ابو عوانه (۱: ۲۲۳)، مشکاة (۲۸۱)

---

[1] اَلْغِیْبَةُ: (بکسر الغین)، بده وینا کول، چا پسے خبرے کول۔ غَابَهُ (باب ضرب) غِیْبَةً وَاغْتَابَهُ، غیبت کول۔

[2] اَلزِّنَا: (بالمد والقصر) زَنٰی (باب ضرب) زِنًی وزِنَاءً: زنا کول۔ د مذکر د پاره صفت زَانٍ راځي چه د هغې جمع زُنَاةٌ ده او د مؤنث د پاره صفت زَانِیَةٌ راځي۔ چه جمع ئے زَوَانٍ ده۔

[3] شَطْرٌ: (بفتح الشین) جزء، حِصّه، ټکړه، طرف، نیمه حصه۔ په قرآن مجید کښې دي چه، قَوْلِه فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ۔ (سورة البقرة ۱: ۱۴۴) یعنې مسجد حرام طرف ته خپل مخ واړوه۔ شَطَرَ (باب نصر) شُطُوْرًا، شَطَرَ عَنْهُ، د هغه نه جدا شه۔

(۱۷) ــ اَلْقُرْآنُ حُجَّةٌ لَكَ قرآن (خويا) ستا د پاره دليل دے اَوْ عَلَيْكَ يا ستا خلاف (دليل) دے۔

(مشكاة (۲۸۱)، مسلم (۱: ۲۰۳)، مسند ابی عوانه (۱: ۲۲۳)

(۱۸) ــ اَلْجَرَسُ جارس (غكول) مَزَامِيْرُ الشَّيْطٰنِ د شيطان شپيلئ دهٔ۔

(مشكاة (۳۸۹۵)، مسلم (۲۱۱۴)

(۱۹) ــ اَلطَّاعِمُ الشَّاكِرُ شكر كوزار خوړونكے كَالصَّائِمِ الصَّابِرِ پشان د صبر كونكي روژه دار دے

مشكاة (۴۲۰۵)، ترمذی (۲۴۸۶)، ابن ماجه (۱۷۶۵)۔

(۲۰) ــ اَلْاِقْتِصَادُ ميانه روی فِي النَّفَقَةِ په خرچ كولو كښ نِصْفُ الْمَعِيْشَةِ نيم ګذران دے۔

---

۱ــه حُجَّةٌ (بضم الحاء) دليل، برهان۔ جمع ئے حُجَجٌ او حِجَاجٌ دهٔ۔ حَجَّهٗ (باب نصر) حُجًّا، په دليل زور آور كيدل۔

۲ــه اَلْجَرَسُ: (بفتح الجيم والراء): تلئ، جارس، جمع ئے اَجْرَاسٌ دهٔ۔ دَقَّ الْجَرَسَ: تلئ ئی اووهله۔

۳ــه مَزَامِيْرُ۔ د مِزْمَارٌ جمع دهٔ: شپيلئ، لهجه، آواز۔ زَمَّرَ: شپيلئ ئے او وهله۔ شپيلئ غكونكی ته زَمِرٌ و ئيلے شی۔

۴ــه الاقتصادُ: (باب افتعال) قَصَدَ (باب ضرب) قَصْدًا، اِقْتَصَدَ: ميانه روی كول۔ اِقْتَصَدَ فِي النَّفَقَةِ: په خرچ كښ ميانه روی كول۔

۵ــه اَلنَّفَقَةُ: خرچ، جمع ئے نَفَقَاتٌ دهٔ۔

۶ــه نِصْفُ: د څه [illegible] ئے آنصاف دهٔ۔

۷ــه اَلْمَعِيْشَةُ: ژوند، د ژوند تيرولو ذريعه، د ژوند د ګذران اسباب۔ جمع ئے مَعَايِشُ دهٔ۔ عَاشَ (باب ضرب) عَيْشًا وَمَعِيْشَةً: ژوندے پاتے كيدل، ژوند تيرول۔

وَالتَّوَدُّدُ اِلَى النَّاسِ[1] او خلقو سره مینه کول نِصْفُ الْعَقْلِ[2] نیم عقل دے وَحُسْنُ السُّؤَالِ او ښایسته (طریقے سره) سوال کول نِصْفُ الْعِلْمِ نیم علم دے۔

مشکاة (٥٠٦٧)، المعجم الاوسط (٦٧٤٠)
امام هیثمی فرمائی: دا دے په سند کښې مخیس بن تمیم او حفص بن عمر دے دوه راویان دی او دا دواړه مجهول دی۔ مجمع الزوائد (١٦٠٤١)
امام ابوحاتم رازی فرمائی: دا روایت باطل دے او مخیس او حفص دواړه مجهول دی۔ (علل الحدیث (٢٨٤٦)، میزان الاعتدال ٣: ٨٥)

(٢١) اَلتَّائِبُ[3] توبه ایستونکے مِنَ الذَّنْبِ[4] د ګناه نه كَمَنْ په شان د هغه چا دے لَا ذَنْبَ لَهٗ چه د هغه هډو څه ګناه نه وی۔

مشکاة (٢٣٦٣)، ابن ماجه (٤٢٥٠)،
امام بیهقی فرمائی: دا دے روایت په نقل کولو کښې احمد بن عبد الله نهروانی منفرد دے او هغه ضعیف دے (شعب الایمان ٥: ٣٨٨) بیا هم د شواهدو د سببه دا روایت حسن دے (المقاصد الحسنه ص ٢٤٩)

---

[1] اَلتَّوَدُّدُ: (باب تفعل) مصدر دے۔ تَوَدَّدَ اِلَيْهِ: دوستی کول۔ وَدَّ (باب سمع) وَدًّا وُدًّا وَمَوَدَّةً وَوِدَادًا: مینه کول، خوښول۔ عرب وائی: وَدِدْتُ لَوْ كَانَ كَذَا یعنی: خما خواهش دُوچه دا کار دا سے وے (نو ښه به وه) مینه کونکی ته وَدُوْدٌ ویلے شی۔ او دا د مذکر او د مؤنث دپاره یو شان استعمالیږی۔

[2] اَلْعَقْلُ: هغه رڼا چه په هغه څیزونه معلومولے شی چه په نظر نه راځی۔ پوهه۔ زړه۔ جمع ئے عُقُوْلٌ ده۔ عَقَلَ (باب ضرب) عَقْلًا: هوښیار یدل، هوښیار۔ عَقَلَ الْغُلَامُ: د هلک پوهه راغله عَقَلَ الشَّيْءَ: هغه پوهه شه۔ په قرآن مجید کښې راځی: اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ (سورة البقرة ٢: ٤٤) ایا تاسو نه پوهیږئ؟

[3] اَلتَّائِبُ: اسم فاعل دے: توبه ایستونکے، پښیمانه کیدونکے، رجوع کونکے۔ تَابَ (باب نصر) تَوْبًا وَتَوْبَةً: متوجه کیدل۔ تَابَ اِلَى اللهِ: الله تعالی ته متوجه شه۔ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ: الله د هغه توبه قبوله کړه۔

[4] اَلذَّنْبُ: (بفتح الذال وسکون النون) ګناه۔ جمع ئے ذُنُوْبٌ ده۔ او جمع الجمع ئے ذُنُوْبَاتٌ ده۔ اَذْنَبَ الرَّجُلُ: سړی ګناه اوکړه۔

(٢٢) ــــ اَلْكَيِّسُ[1] مَنْ عقل مند هغه څوك دے دَانَ[2] نَفْسَهٗ چه خپل ځان ذليل اوګنړی وَعَمِلَ او عمل اوکړی لِمَا بَعْدَ الْمَوْتِ د هغے (ژوند) د پاره چه د مرګ نه روستو دے وَالْعَاجِزُ[3] مَنْ اوکمزورے هغه څوك دے اَتْبَعَ نَفْسَهٗ هَوَاهَا[4] چه روان شی په خپلو نفسانی خواهشاتو پسے وَتَمَنّٰى عَلَى اللّٰهِ او (بیاهم) د الله تعالیٰ نه امید ونه ساتی۔

مشکاۃ (٥٢٨٩)، ابن ماجه (٤٢٦٠)، المستدرك (١: ٥٧، ٤: ٢٥١)۔
امام حاکم فرمائی :- دا روایت صحیح دے۔
حافظ ذهبی وائی : نه! په الله تعالیٰ ام د قسم وی. دا سے نهٔ ده. دد ے راوی ابوبکر بن ابی مریم "واکو" دے (تلخیص المستدرك ١: ٥٨)

(٢٣) ــــ اَلْمُؤْمِنُ مَأْلَفٌ[5] مؤمن محبوب دے وَلَاخَيْرَ فِيْمَنْ او په هغه چاکښ هیڅ خیر نیشته لَا يَأْلَفُ چه نهٔ هغه د چا سره مینه کوی وَلَا يُؤْلَفُ اونهٔ د هغه سره څوك مینه کوی۔ مسند احمد ٢: ٤٠٠، ٥: ٣٣٥، مشکاۃ (٤٩٩٥)۔

---

[1] اَلْكَيِّسُ: (بفتح الكاف وكسر الياء المشددة): عقل مند، هوښيار، پوهه۔ جمع يے اَكْيَاسٌ او كَيْسٰى دهٔ۔ او مؤنث ئے كَيِّسَةٌ دهٔ چه د هغے جمع كَيَاسٌ راځی۔ كَاسَ (باب ضَرَبَ) كَيْسًا وَكِيَاسَةً: چالاکیدل. هوښیارکیدل۔ كَاسَ الْغُلَامُ: هلك هوښيار شه، چالاك شهٔ۔

[2] دَانَ: (باب ضَرَبَ) دِيْنًا: ذليل كول، تابع كول، غلام جوړول۔

[3] اَلْعَاجِزُ: كمزورے، قدرت نهٔ لرونكے، احمق، بے وقوف، عَجَزَ (باب ضَرَبَ، سَمِعَ) عجزًا عَنْ كَذَا: كمزورے كيدل۔ عَجَزَ فُلَانٌ عَنِ الْعَمَلِ: فلانے د كار كولو طاقت نهٔ لری۔

[4] هَوٰى: (بالفتح) نفسانی خواهشات، عشق، محبت۔ فُلَانٌ اِتَّبَعَ هَوَاهُ: فلانے په خپل خواهش پسے لاړ۔ دد ے استعمال په بدئ کښی کولے شی۔

[5] مَأْلَفٌ (اسم ظرف): د دوستئ او د مینے ځائے۔ هغه څوك چه هغهٔ سره مینه او محبت كولے شی جمع ئے مَآلِفُ راځی۔ اَلِفَ (باب سَمِعَ) اَلْفًا: مانوس كيدل، مينه كول۔

(۲۴) اَلْغِنَاءُ[1] تمنګ تګور يُنْبِتُ[2] النِّفَاقَ[3] (دا سے) منافقت راز رغونه وی فِي الْقَلْبِ[4] په زړهٔ کښې كَمَا يُنْبِتُ الْمَاءُ الزَّرْعَ[5] لکه څنګه چه اوبهٔ فصل زرغونه وی۔

مشکاة (۴۸۱۰)، السنن الکبری للبیهقی ۱۰: ۲۲۳)۔

ددے روایت سند ضعیف دے ځکه چهٔ انقطاع دٙ پکښې۔ د محمد بن عبدالرحمٰن او ابن مسعود رض ترمینځهٔ۔ (احادیث ذم الغناء فی المیزان ص ۵۸)

(۲۵) اَلتُّجَّارُ[6] يُحْشَرُونَ[7] سوداګران به پورته کولے شي يَوْمَ الْقِيٰمَةِ دقیامت په ورځ فُجَّارًا ګناه کاران اِلَّا مَنِ اتَّقٰى[8] ماسیوا دهغهٔ (سوداګر) نه چهٔ د الله نه ئے ویره کړی وی

---

[1] اَلْغِنَاءُ: (بالقصر والمد) مالداری، ګانا بجانا، تمنګ تګور۔ غَنِيَ (باب سمع) غِنَاءً وغَنِيَ و تَغَنّٰى: مالداره کیدل۔ مال دار ته غَنِيٌّ ويلے شي جمع ئے اَغْنِيَاءُ ده۔

[2] يُنْبِتُ: اَنْبَتَ، اِنْبَاتًا: زرغونول، بوټي کول۔ اَنْبَتَ اللّٰهُ الْبَقْلَ: الله تعالیٰ ترکاری اوبوټي کوله، زرغون ئے کړه۔ نَبَتَ (باب نصر) نَبْتًا ونَبَاتًا: بوټی کیدل۔

[3] اَلنِّفَاقُ وَالْمُنَافَقَةُ: دباب مفاعله مصدر دے۔ نَافَقَ فِي دِيْنِهٖ: په ژبه ئے دایمان اقرار اوکړو د په زړهٔ کښې ئے کفر پټ اوساته۔ اسم صفت ترے مُنَافِقٌ راځي چه جمع ئے مُنَافِقُوْنَ دٙ۔

[4] اَلْقَلْبُ: زړهٔ، عقل، جمع ئے قُلُوْبٌ دٙ۔ قَلَبَ (باب ضرب) قَلْبًا: اړه ول را اړول۔

[5] اَلزَّرْعُ: فصل، جمع ئے زُرُوْعٌ دٙ۔ زَرَعَ (باب فتح) زَرْعًا: کرل، تُخُم اچول۔

[6] اَلتُّجَّارُ: سوداګران، د تَاجِرٌ جمع دٙ۔ تِجَارٌ او تُجُرٌ ئے هم جمع راځي۔ تَجَرَ (باب نصر) تِجَارَةً وَاتَّجَرَ: تجارت کول، سوداګری کول۔

[7] يُحْشَرُوْنَ: حَشَرَ (باب نصر) حَشْرًا: جمع کول۔ حَشَرَ النَّاسَ: خلق ئے جمع کړل۔ د دینه يَوْمُ الْحَشْرِ د تلے دے، د قیامت ورځ۔ مَحْشَرٌ: د جمع کیدو ځائے۔

[8] اِتَّقٰى اِتِّقَاءً: پرهیزګاره کیدل، پرهیز کول، یم کیدل، یریدل۔ په قرآن مجید کښې آیت دے فَاَمَّا مَنْ اَعْطٰى وَاتَّقٰى (سورة اللیل ۹۲: ۵) وَقٰى (باب ضرب) وِقَايَةً: حفاظت کول، بچ کول۔ وَقَاهُ اللّٰهُ السُّوْءَ: الله تعالیٰ دِ هغه د بدو او ساتی۔

وَبَرَّ[1] او رشتیائے وئیلے وی په (قسم) کښې وَصَدَقَ او رشتیائے دئیلے وی

په (معامله) کښې

ترمذی (۱۲۱۰)، ابن ماجه (۲۱۴۶) مشکاة (۲۷۹۹)۔

(۲۶)___ اَلتَّاجِرُ الصَّدُوقُ الْاَمِيْنُ (وی به) د رښتنی او امانت دار سوداګر مَعَ النَّبِيِّيْنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَالشُّهَدَاءِ د انبیاؤ، صدیقینو، او شهیدانو سره

ترمذی (۱۲۰۹)، ابن ماجه (۲۱۳۹)، مشکاة (۲۷۹۶)،

امام ترمذی وائی: دا حدیث حسن دے. دد ے په سند کښې کلثوم بن جوشن قشیری نوے راوی دے او هغه ضعیف دے (میزان الاعتدال ۳: ۴۱۳)۔

امام ابوحاتم رازی وائی: دد ے روایت هیڅ اصل نیشته او کلثوم په حدیث کښې کمزورے دے (علل الحدیث ۱: ۳۸۶) والله اعلم

(۲۷)___ اَلْكَبَائِرُ لوئے لوئے ګناهونه (دادی)، اَلْاِشْرَاكُ بِاللهِ الله تعالیٰ سره برخے خاوند ګنړل وَعُقُوقُ[2] الْوَالِدَيْنِ او د مور پلار نافرمانی کول وَقَتْلُ النَّفْسِ او قتل د انسان (بغیر د شرعی حق نه) وَالْيَمِيْنُ[3] الْغَمُوسُ[4] او دروغژن قسم (خوړل)۔ بخاری ۸: ۱۷۱، نسائی (۴۸۶۷)، (۴۸۶۸)، مشکاة (۵۰)۔

---

[1] بَرَّ: (باب سمع، ضرب) بِرًّا، بَرَّ فِي قَوْلِهِ: رشتیا وئیل. بَرٌّ: نیک سړے، جمع ئے اَبْرَارٌ دہ. بِرٌّ: نیکی، ریښتینولی، طاعت، فرمان برداری.

[2] عُقُوقٌ: عَقَّ (باب نصر) عُقُوقًا: نافرمانی کول، عَقَّ الْوَلَدُ وَالِدَهُ: هلک د خپل پلار نافرمانی اوکړه

[3] يَمِيْنٌ: قسم، حلف، جمع ئے اَيْمُن او اَيْمَان دہ، يَمِيْنُ اللهِ لَا اَفْعَلُ: په الله مې قسم وی چې هغه به نه کوم

[4] اَلْغَمُوسُ: (بفتح العین) هغه معامله چه سړے جنجال سره مخ کړی، جمع ئے غُمُسٌ دہ، اَلْيَمِيْنُ الْغَمُوسُ: دروغژن قسم. غَمَسَهُ (باب ضرب) غَمْسًا فِي الْمَاءِ: غوپه ورکول۔

(۲۸) — اَلْبِرُّ نیکی حُسْنُ الْخُلُقِ[1] خوش اخلاقی دہ وَالْاِثْمُ مَا او ګناه هغه دے
حَاكَ[2] فِيْ نَفْسِكَ چه شك واچوی ستا په زړه کښی وَكَرِهْتَ او ابله واچے
ته بد کنړے اَنْ يَّطَّلِعَ عَلَيْهِ النَّاسُ چه په هغے باندے خلق خبر شی۔

مسلم (۲۵۵۳) مشکاة (۵۰۷۳)

(۲۹) — اَلْخَلْقُ[3] ټول مخلوق عِيَالُ اللّٰهِ[4] د الله تعالیٰ ټبر دے فَاَحَبُّ الْخَلْقِ
نو زیات محبوب په مخلوق کښی اِلَى اللّٰهِ مَنْ الله تعالیٰ ته هغه څوك دی۔
اَحْسَنَ اِلٰى عِيَالِهٖ چه د هغهٔ ټبر سره خه کوی۔

شعب الایمان ۶: ۴۳، ۴۴، مشکاة (۴۹۹۸) المعجم الاوسط (۵۵۴۷)۔

دا روایت موضوع دے. امام هیثمی وائی: د دے راوی یوسف بن عطیه صفار، او بل راوی ابو هارون عمیر قرشی دواړه متروك دی۔ (مجمع الزوائد ۸: ۱۹۱)
حافظ ابن جوزی وائی: دا روایت صحیح نهٔ دے (العلل المتناهیة ۲: ۲۹)
علماء صاحبان دِ د ابن عدی "الکامل فی ضعفاء الرجال" د دوم جلد صفحه (۲۶۱۰) هم اوګوری۔

---

[1] اَلْخُلُقُ: (بضم الخاء وسکون اللام وضمها) طبیعت، عادت، خوئے، اخلاق، کره وره، کردار۔ جمع ئے اخلاق دہ۔ په قرآن مجید کښی دی چه وَاِنَّكَ لَعَلٰى خُلُقٍ عَظِيْمٍ (سورة القلم ۶۸: ۴)۔
[2] حَاكَ (باب نصر) خوځا۔ حَاكَ الشَّيْئُ فِيْ صَدْرِيْ: په تردد کښی اچول، په شك کښی اچول۔
[3] اَلْخَلْقُ: (بفتح الخاء) مخلوق، خلق۔
[4] عِيَالٌ: د کور بندیان، اولاد۔

(۳۰) ـــ اَلْمُسْلِمُ مَنْ کامل مسلمان هغه دے سَلِمَ[1] الْمُسْلِمُوْنَ چه بچ پاتې شي نور مسلمانان مِنْ لِسَانِهٖ[2] وَيَدِهٖ د هغهٔ د ژبے او د لاس د ضرر نه وَالْمُجَاهِدُ مَنْ او کامل مجاهد هغه دے جَاهَدَ[3] نَفْسَهٗ چه جهاد اوکړی خپل نفس سره فِيْ طَاعَةِ اللّٰهِ د الله تعالیٰ په فرمان بردارئ کښ.

بخاری (۱: ۹ ؛ ۸ : ۱۲۷) مسلم (۱: ۶۵)

(۳۱) ـــ اَلْمُؤْمِنُ مَنْ کامل مؤمن هغه څوك دے اَمِنَهُ النَّاسُ چه خلق هغهٔ نه امن والا اوګڼړی عَلٰی دِمَائِهِمْ[4] په خپلو وينو باندِ وَعَلٰی اَمْوَالِهِمْ[5] او په خپلو مالونو باندِ

ترمذی (۲۶۲۷)، نسائی (۴۹۹۵)، مسند احمد ۲ : ۳۷۹ ، مشکاة (۳۳)

(۳۲) ـــ وَالْمُهَاجِرُ[6] مَنْ او کامل هجرت کوونکے هغه څوك دے هَجَرَ الْخَطَايَا[7] چه هغه پريخی دی غلطئ وَالذُّنُوْبَ او ګناهونه.

ابن ماجه (۳۹۳۴)، مشکاة (۳۴)

---

[1] سَلِمَ : (باب سمع) سَلَامًا وَسَلَامَةً ، محفوظه کيدل ، خلاصے موندل ، بچ کيدل.
[2] لِسَانٌ : ژبه ، جمع ئے اَلْسِنَةٌ ده
[3] جَاهَدَ مُجَاهَدَةً د باب مفاعله نه دے : جهاد کول ، ټول طاقت خرچ کول ، پوره وَس کول . مُجَاهِد : پوره خپل وَس کوونکے.
[4] دِمَاءٌ : (بکسر الدال) د دَمٌ جمع ده : وينه . دلته ترے مراد نفس دے . اصل ئے دَمْیٌ دے ، لام کلمه ئے ترے حذف کړه نو دَمٌ دے ئيلے شی.
[5] اَمْوَالٌ : جمع ده . واحد ئے مَالٌ دے : مال ، دولت ، جائيداد.
[6] اَلْمُهَاجِرُ : د باب مفاعله نه اسم فاعل دے : هجرت کوونکے ، پريښودونکے . هَاجَرَ ، مُهَاجَرَةً : هجرت کول ، پريښودل . هَجَرَ (باب نصر) هَجْرًا : پريښودل ، جدا کيدل ، تعلق درانول.
[7] اَلْخَطَايَا : د خَطِيئَةٌ جمع ده : ګناه ، خَطِئَ (باب سمع) خَطَاءً وَخِطْأً : خطا کيدل ، غلطی کول.

(۳۳) — اَلْبَيِّنَةُ[1] گواه پیش کول عَلَى الْمُدَّعِيْ[2] په دعوی کوونکی باندې دي وَالْيَمِيْنُ او قسم کول عَلَى الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ[3] په هغه چا باندې دي چه په هغه دعوی وي.

ترمذی (۱۳۴۱)، السنن الکبری للبیهقی ۸ : ۲۷۹، ۱۰ : ۲۵۲، مشکاة (۳۷۶۹)

(۳۴) — اَلْمُؤْمِنُ یو مؤمن مِرْآةُ[4] الْمُؤْمِنِ د بل مؤمن آئینه ده وَالْمُؤْمِنُ او یو مؤمن اَخُو الْمُؤْمِنِ د بل مؤمن ورور دے يَكُفُّ[5] عَنْهُ ضَيْعَتَهُ[6] حفاظت به کوی د هغه د جائیداد وَيَحُوْطُهُ[7] او د هغه حفاظت به کوی مِنْ وَرَائِهِ[8] د هغه په غیر موجودگئ کښ.

ابوداود (۴۹۱۸)، السنن الکبری للبیهقی ۳ : ۳۷۵، مشکاة (۴۹۸۵).

---

[1] اَلْبَيِّنَةُ: دلیل، حجت، گواه، جمع ئے بَيِّنَاتٌ ده. بَانَ (باب ضرب) بَيَانًا وَتَبْيِيْنًا: ظاهریدل، واضح کیدل.
[2] اَلْمُدَّعِيْ: اسم فاعل: دعوی کوونکے. اِدَّعٰى د باب افتعال نه اَلشَّيْءُ: ریشتینے یا د دروغو دعوی کول
[3] اَلْمُدَّعٰى: اسم مفعول: هغه څوک چه په هغه دعوی کړے شوے دی.
[4] مِرْآةٌ: (بکسر المیم) آئینه. د رُؤْيَةٌ نه د اسم آله صیغه ده. مَرَاءٍ او مَرَايَا ئے جمع ده. رَءٰى (باب فتح) يَرٰى، رُؤْيَةً: لیدل، خواه که د سترګو وی یا د زړۀ (یعنی: عقل) افعال قلوب کښ شمیرلے شی.
[5] يَكُفُّ: كَفَّ (باب نصر) كَفًّا وَكَفَافَةً: اودریدل، اودرول. لازم او متعدی دواړه استعمالیګی. كَافَّةُ النَّاسِ: ټول خلق.
[6] ضَيْعَةٌ: مصدر دے، ضَاعَ، ضَيْعًا وَضَيْعَةً: ضائع کیدل، بے کاره کیدل.
[7] يَحُوْطُهُ: حَاطَهُ (باب نصر) حَوْطًا: نګرانی کول، حفاظت کول.
[8] وَرَاءَ (بالفتح) ظرف مکان دے. د روستو او کله کله د وړاندې په معنیٰ راځی. او د علاوه او د سوا په معنیٰ هم استعمالیګی. لکه: فَمَنِ ابْتَغٰى وَرَاءَ ذٰلِكَ (سورة المؤمنون ۲۳: ۷)

(۳۵) — اَلْمُؤْمِنُوْنَ ټول مؤمنان كَرَجُلٍ وَاحِدٍ د يو سړي په شان دي اِنِ اشْتَكٰى[1] كه چرے خوږ شي عَيْنُهٗ د ده سترګه اِشْتَكٰى كُلُّهٗ (نو) خوږيږي ټول (وجود) د ده وَاِنِ اشْتَكٰى رَأْسُهٗ او كه چرے د ده سر خوږ شي اِشْتَكٰى كُلُّهٗ (نو) بيا هم ټول (وجود) د ده خوږيږي۔

مسلم (۲۵۸۶)، مسند احمد ۴: ۲۷۶، مشكاة (۴۹۵۴)۔

(۳۶) — اَلسَّفَرُ سفر قِطْعَةٌ[2] ټكړه ده مِّنَ الْعَذَابِ د عذاب يَمْنَعُ اَحَدَكُمْ منع كوي هر يو ستاسو كښ نَوْمَهٗ د خپل خوب نه وَطَعَامَهٗ او د خپل خوراك نه فَاِذَا قَضٰى[3] اَحَدُكُمْ نو كله چه پوره كړي يو تن په تاسو كښې نَهْمَتَهٗ[4] خپل حاجت مِنْ وَجْهِهٖ[5] د خپلے مخے فَلْيُعَجِّلْ نو خامخا تلوار دِ كوي (په واپس كيدو كښ) اِلٰى اَهْلِهٖ خپل اهل ته۔

بخاري ۳: ۱۰، ۴: ۷۱، ۷: ۱۰۴، مسلم (۱۹۲۷)، مشكات (۳۸۹۹)۔

---

[1] اِشْتَكٰى: بيمار شۀ. اِشْتَكٰى اليه: هغۀ ته ئے شكايت او رسولو۔

[2] اَلْقِطْعَةُ: ټكړا، حصه، جمع ئے قِطَعَاتٌ او قِطَعٌ ده۔

[3] قَضٰى: (باب ضرب) قَضَاءً ـ حَاجَتَهٗ: پوره كول۔

[4] نَهْمَةٌ: (مصدر) د نَهَمَ اسم، مَرَّةٌ: ضرورت، خواهش ـ قَضٰى مِنْهُ نَهْمَتَهٗ: هغۀ خپل خواهش پوره كۀ نَهِمَ (باب فَتَحَ) نَهْمًا وَنَهْمَةً ـ اَلْاِبِلُ: اوښ د زغلولو دپاره زورول، وهل۔

[5] وَجْهِهٖ: وَجْهُ الْكَلَامِ: د كلام مقصد، طرف، هغه كار چه هغے ته د انسان مخه دي، توجه دي وَجَّهَ اِلٰى فُلَانٍ: چا پسے ليږل۔

# نوۓ[1] آخر منها

یعنی د جمله اسمیه هغه قسم چه د هغې په مسند الیه (خبر) باندے

الف لام نهٔ وی راغلی

۱ (۳۷) — قَفْلَةٌ[2] واپس راتلل (خپل اهل ته) كَغَزْوَةٍ[3] د غزا په شان دی.

ابو داؤد (۲۴۸۷)، مسند احمد ۲: ۱۷۴، مشکاة (۳۸۴۱).

۲ (۳۸) — مَطْلُ[4] الْغَنِيِّ د مالداره (سړی) نن صبا کول ظُلْمٌ ظلم دے.

بخاری ۲: ۱۲۳، ۱۵۵، مسلم (۱۵۶۴)، مشکاة (۲۹۰۷).

۳ (۳۹) — سَيِّدُ الْقَوْمِ د قوم مشر فِي السَّفَرِ په سفر کښې خَادِمُهُمْ د هغوی خدمت کونکے وی.

شعب الایمان ۶: ۳۳۴، مشکاة (۳۹۲۵)

دا روایت ضعیف دے، خو په کنز وسند ولو سره نقل دے نو د هغې د کبله د حسن درجے ته رسیکی (کشف الخفاء ۱: ۵۶۲)

---

[1] نَوْعٌ: قِسم، جمع ئے اَنواع دہ. تَنَوَّعَ تَنَوُّعًا (د باب افتعال نه) قِسمونه کول.

[2] قَفْلَةٌ: (د مَرَّةٌ) اسم: واپس راتلل. قَفَلَ (باب نصر، ضرب) قَفْلًا وقُفُولًا: د سفر نه واپس کیدل، واپس راتلل. لفظ "قافِلَة" د دے نه وتے دے: کاروان، د سفره واپس کیدونکی.

[3] غَزْوَةٌ: غَزَا (باب نصر) غَزْوًا: د جهاد د پاره وتل، جهاد کول. د غزا اسم مَرَّةٌ دے. جمع ئے غَزَوَات دہ.

[4] مَطْلٌ: (باب نصر) مَطْلًا: ټال مټول کول، نن صبا کول. مَطَلَهُ بِحَقِّهِ: د هغه د حق په ادا کولو کښې ئے ټال مټول اوکړهٔ. مَطَلَ الدَّيْنَ: د قرض په ورکولو کښې ئے تاخیر اوکړهٔ.

۴ (۴۰) — حُبُّكَ الشَّيْءَ ستا مینه د څه څیز سره يُعْمِيْ وَيُصِمُّ [1][2] تا، ړند کاوی او کڼ وی.

ابوداؤد (۵۱۳۰)، مسند احمد ۵: ۱۹۴، ۶: ۴۵۰، مشکاة (۴۹۰۸)

امام منذری وائی: صحیح دادہ چه: دا روایت موقوف دے، مرفوع نه دے.
حافظ ابن حجر وائی: د دے راوی ابوبکر بن ابی مریم دے. هغه د معمولی درجے ریښتینی دے، شامی دے، غلو پرے د شپے ډاکه اچولے وه چه هغه سره اوږد پېدلو او دماغ ئے خراب شو. او س دے په مختلطینو کښی شمیرلے شی (اجوبة الحافظ ابن حجر ص: ۱۷۸۵، تقریب ص: ۳۹۶)
علامه محمد بن طاهر لیکی: دا روایت موضوعی دے. تذکرة الموضوعات ص: ۱۹۹

۵ (۴۱) — طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيْضَةٌ د علم طلب کول فرض دی عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ په هر مسلمان باندے.

ابن ماجه (۲۲۴)، المعجم الکبیر للطبرانی ۱۰: ۱۹۵، مشکاة (۲۱۸)

۶ (۴۲) — مَا قَلَّ هغه شے چه کم وی وَكَفٰى (خو بیا هم) ضرورت پوره کول او کړی خَيْرٌ مِّمَّا (هغه) د هغے څیز نه ډیر غوره دے كَثُرَ چه هغه ډیر وی وَأَلْهٰى [3] (خو) غفلت پیدا کړی.

مسند احمد ۵: ۱۹۷، مشکاة (۵۲۱۸)

---

[1] يُعْمِيْ: أَعْمَى الرَّجُلَ، ړند ول. عَمِيَ (باب سمع) عَمًى: ړندیدل
[2] يُصِمُّ: أَصَمَّ: کڼ ول. صَمَّ (باب سمع) صَمًّا: کڼیدل، صفت ئے أَصَمُّ دے چه جمع ئے صُمٌّ او صُمَّانٌ دہ.
[3] وَأَلْهٰى: إِلْهَاءٌ عَنْ كَذَا: غافله کول، لَهِيَ (باب سمع) لَهًا بِكَذَا: غافله کیدل، لَهْوٌ: لوبے، چه هغه انسان د الله تعالیٰ د یاده ولو نه غافله کړی.

۷۔ (۴۳)۔۔۔ اَصْدَقُ الرُّؤْيَا ډیر ریښتینی خوب (هغه دے) بِالْأَسْحَارِ چه په سحر کښې (اولیدے شی)

ترمذی (۲۲۷۴)، مشکاۃ (۴۶۲۷)

دا دے روایت سند ضعیف دے ځکه چه دا دے راوی دراج مصری دے چه د هغه په باره کښې امام احمد وائی: احادیث ئے منکر او ضعیف دی۔ او ابیا هم هغوی دا روایت د هغه د کمزوری او ضعیف روایت د نمونے په توګه پیش کړے (میزان الاعتدال ۳: ۲۴)

۸۔ (۴۴)۔۔۔ طَلَبُ كَسْبِ الْحَلَالِ د حلال کسب طلب کول فَرِيضَةٌ فرض دی بَعْدَ الْفَرِيضَةِ د بل فرض نه۔

شعب الایمان ۶: ۴۲۰، کنز العمال (۹۲۳۱) مشکاۃ (۲۷۸۱)۔

دا دے روایت سند ضعیف دے ځکه چه راوی ئے عباد بن کثیر دے او هغه متروک دے۔ (میزان الاعتدال ۲: ۳۷۲) په دے وجه امام عجلونی وائی: د دے روایت سند کمزورے دے (کشف الخفاء ۲: ۵۹)

۹۔ (۴۵)۔۔۔ خَيْرُكُمْ مَنْ په تاسو کښې غوره هغه څوک دے تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ چه هغه قرآن کریم زده کړی وَعَلَّمَهُ او دا بل چا ته او ښائی۔

بخاری ۶: ۲۳۶، ابوداؤد (۱۴۵۲)، مشکاۃ (۲۱۰۹)۔

---

ل اَصْدَقُ: اسم تفضیل دے: ډیر ریښتینی، صَدَقَ (باب نصر) صِدقًا، رښتیا ویل۔
ل الرُّؤْيَا: خوب، رأیٰ، یریٰ، رُؤْيَةً (باب فتح) لیدل۔
ل الْأَسْحَار: جمع ده، واحد ئے سَحَر دے: صبا، سحر، وختی۔
ل كَسْبٌ: مصدر دے کتل۔ كَسَبَ (باب ضرب) كَسْبًا، وَاكْتَسَبَ، مَالًا وَعِلْمًا: مال یا علم حاصلول۔ طلب کول او کتل۔
ل تَعَلَّمَ: (باب تفعّل) زده کول۔ عَلَّمَ تَعْلِيمًا (باب تفعیل): بل چا ته ښودنه کول

۱۰ (۴۶)ـــ حُبُّ الدُّنْيَا د دنیا مینه رَأْسُ كُلِّ خَطِيئَةٍ د هرې ګناه سر دې

شعب الایمان ۷، ۳۳۸۱، مشکاۃ (۵۲۱۳)

حافظ ابو نعیم وائی: دا د عیسیٰ علیه السلام کلام دې (حلیة الاولیاء ۶: ۳۸۸) امام ابن تیمیه ؒ وائی: دا د عبد الرحمٰن بن جندب رضی الله عنه وینا ده (مجموع فتاوی شیخ الاسلام (۱۱: ۱۰۷) امام سیوطی او علامه مُناوی وائی: دا روایت موضوعی دې (تدریب الراوی ۱، ۲۸۷) فیض القدیر ۳: ۳۶۹)

۱۱ (۴۷)ـــ اَحَبُّ الْاَعْمَالِ د ډیر محبوب په اسیکو عملونو کښې اِلَى اللّٰهِ الله تعالیٰ ته اَدْوَمُهَا هغه دی چه همیشه وی وَاِنْ قَلَّ اګرچه لږ وی

بخاری ۷: ۲۰۰، ۸: ۱۲۲ مسلم (۷۸۲) مسند احمد ۶: ۱۶۵، ۲۷۳، مشکاۃ (۱۲۴۲)

۱۲ (۴۸)ـــ اَفْضَلُ الصَّدَقَةِ د ټولو نه غوره خیرات دا دې اَنْ تُشْبِعَ چه ته موړ کړې كَبِدًا جَائِعًا (خاوند د) ځګر اوږې

شعب الایمان ۳: ۲۱۶، مشکاۃ (۱۹۴۶)۔

---

۱ حُبٌّ: مصدر دې، حَبَّ (باب ضرب) حُبًّا وحِبًّا، الشیء، مینه کول۔

۲ رَأْسٌ: سر، جرړه، بنیاد، اصل، جمع ئې رُءُوسٌ ده۔ رَءُسَ (باب کرم) رِئَاسَةً، رئیس کیدل مشر کیدل

۳ اَدْوَمُ: دا اسم تفضیل صیغه ده چه همیشه وی، د ډیره موده وی۔ دَامَ (باب نصر) دَوْمًا: همیشه کیدل۔

۴ تُشْبِعُ: (صیغه واحد مذکر حاضر د باب افعال نه) اَشْبَعَ، اِشْبَاعًا: خوړک مړه ول شَبِعَ (باب سمع) شِبْعًا: مړیدل۔

۵ كَبِدٌ: آینه، ځګر دا مذکر او مؤنث دواړه یو شان استعمالیږي۔ جمع ئې اَكْبَادٌ كُبُودٌ او اَكْبُدٌ ده

۶ جَائِعًا: اوږې، جَاعَ (باب نصر) جُوعًا، اوږې کیدل۔ دا اسم فاعل صیغه ده۔ جمع ئې جِيَاعٌ ده۔

١٠ (١٤٠) — لَا تَأْذَنُوا اجازت (دَ داخليدو) مهٔ ورکوئ مَنْ هغه چاته لَمْ يَبْدَأْ چهٔ هغه ابتداء (شروع) نهٔ دی کړے بِالسَّلَامِ پهٔ سلام کولو

شعب الایمان (٨٨١٦)، مشکاة (٤٦٧٦)۔

١١ (١٤١) — لَا تَنْتِفُوا[1] الشَّيْبَ[2] پهٔ نوسی مهٔ او باسئ سپین ویښتهٔ فَإِنَّهُ نُورُ الْمُسْلِمِ ځکه چهٔ دا د مسلمان نور دے۔

ترمذی (٢٨٢١)، شرح السنة ١٢: ٩٥)، مشکاة (٤٤٥٨)

١٢ (١٤٢) — اِزْهَدْ بے رغبته شه فِي الدُّنْيَا پهٔ (حاصلولو او مقصد گرځولو) د دُنیا کښ يُحِبَّكَ اللّٰهُ تاسره به الله تعالیٰ مینه اوکړی وَازْهَدْ فِيمَا او بے رغبته شه پهٔ (حاصلولو د) هغه څیز کښ عِنْدَ النَّاسِ چې د خلقو سره دے يُحِبَّكَ النَّاسُ مینه به اوکړی تاسره خلق۔

ابن ماجه (٤١٠٢)، المستدرک (٤: ٣١٣)، مشکاة (٢٩٣٤)۔

١٣ (١٤٣) — كُنْ فِي الدُّنْيَا پهٔ دنیا کښ (د اسے) یه كَأَنَّكَ غَرِيبٌ[3] کو یا کهٔ ته

---

[1] لَاتَنْتِفُوا:۔ نَتَفَ (باب ضَرَبَ) نَتْفًا و نَتَّفَ، الشَّعْرَ: ویښتهٔ او باسل۔ نَتَّفَ الرِّيْشَ: ویښتهٔ پهٔ نوسی اوباسل۔ "نِتَافٌ" نوسی ته وئیلے شی۔

[2] اَلشَّيْبُ: (بفتح الشین) سپین ویښتهٔ، بوډا والے۔ شَابَ (باب ضَرَبَ) شَيْبًا و شَيْبَةً: بوډا کیدل ویښته سپینیدل۔ عرب وائی:۔ شَابَتْ رُؤُوسُ الْآكَامِ: د غونډو او د ډیرو سوکے سپینے شوے۔ پهٔ قرآن مجید کښ دی: وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا (مریم ١٩: ٤) زما سر سپین بلکل شوے دے۔

[3] غَرِيْبٌ: مذکر دے جمع ئے غُرَبَاءُ دهٔ: هغه چاته وئیلے شی چهٔ مسافر وی، ناآشنا وی، او څوک تپوس کوونکے ئی نهٔ وی۔ مؤنث ئے غَرِيْبَةٌ دهٔ چهٔ د هغے جمع غرائب دهٔ۔ غَرَبَ (باب نصر) غَرْبًا وغُرْبَةً، لرے کیدل، جدا کیدل، پردی وطن ته تلل۔

مسافر ئے او عَابِرُ سَبِیلٍ یا پہ لارہ تلو نکے ئے۔

بخاری ۸ : ۱۱۰ ، ترمذی (۲۳۳۳) ، مشکاۃ (۵۲۷۴)۔

۱۴ (۱۴۴) — لَا تَتَّخِذُوا الضَّيْعَةَ جائید ادمہ جوڑوئ فَتَرْغَبُوا فِي الدُّنْيَا

ګکہ مینہ بہ مو پیداشی د دنیا سرہ (د آخرت پہ مقابلہ کښی)۔

مسند الحمیدی (۱۲۲) ، ترمذی (۲۳۲۸) ، مشکاۃ (۵۱۷۸)

۱۵ (۱۴۵) — أَعْطُوا الْأَجِيرَ[۲] مزدور کړئ مزدور تہ أَجْرَهُ دهغہ مزدوری قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ[۳]

مخکښ د دینہ چہ اوچہ شی عَرَقُهُ[۴] دهغہ خوله۔

ابن ماجہ (۲۴۴۳) ، السنن الکبری للبیہقی ۶ : ۱۲۰ ، مشکاۃ (۲۹۸۷)۔

۱۶ (۱۴۶) — خَالِفُوا الْمُشْرِكِينَ د مشرکانو مخالفت کوئ وَفِّرُوا اللِّحَى[۵] ګیرے کوړے

(اولوئ کړئ) وَأَحْفُوا[۶] الشَّوَارِبَ[۷] او د ویخہ لرے کړئ بریت

بخاری (۲۰۶:۷) ، مسلم (۲۵۹) ، مشکاۃ (۴۴۲۱)۔

---

[۱] عَابِرٌ :۔ د اسم فاعل صیغہ دہ : تلونکے ، پورے وتونکے۔ جمع ئے عُبَّارٌ او عَبَرَةٌ دہ۔ عَبَرَ (باب نصر) عَبْرًا وعُبُورًا۔ السَّبِيلُ : پہ لارہ باندے تلل۔ اَلْوَادِيَ : د کند ے یا د غرہ د لمنے نہ پورے وتل۔

[۲] أَجِيرٌ :۔ مزدور ، نوکر۔ جمع ئے أُجَرَاءُ دہ۔ آجَرَ : پہ مزدورئ ئے ورکړو۔ اِسْتَأْجَرَ :۔ پہ مزدورئ ئے واخستلو۔

[۳] جَفَّ : (باب ضرب) جَفًّا وجُفُوفًا : اوچیدل۔ صفت ئے جَافٌّ او جَفِيفٌ دے۔

[۴] عَرَقٌ :۔ (بفتح الکل) خوله۔ عَرِقَ (باب سمع) عَرَقًا : خوله راتلل۔ صفت ئے عَرْقَانٌ دے۔

[۵] اَللِّحَى : (بکسر اللام وضمہا) د لِحْيَةٌ جمع دے : ګیرہ۔

[۶] أَحْفُوا : فعل امر دے۔ أَحْفَى إِحْفَاءً۔ شَارِبَهُ : د بریتو پہ لرے کولو کښی د مبالغے نہ کار اخستل۔ حَفِيَ (باب سمع) حَفًا : د ډیر ګرزیدلو او تللو د وجے پښے سوزیدل ، پښے ابلے تلل۔

[۷] اَلشَّوَارِبُ :۔ د شَارِبٌ جمع دہ : بریت۔

۱۷ (۱۴۷) — بَشِّرُوا (زیری (خوشحالئ) ورکړئ) وَلَا تُنَفِّرُوا او نفرت مه خوروئ
وَيَسِّرُوا او اسانتیا کوئ وَلَا تُعَسِّرُوا او تنګسیا مه پیدا کوئ۔

بخاری ۱: ۲۷، مسلم (۱۷۳۲)، مشکاة (۳۷۲۲)۔

۱۸ (۱۴۸) — أَطْعِمُوا الْجَائِعَ په اوږي باندې ډوډۍ اوخوروئ وَعُودُوا الْمَرِيضَ
او ناجوړه تپوس کوئ وَفُكُّوا الْعَانِيَ او قیدی ازادوئ

بخاری ۴: ۸۳، ۷: ۸۷، ابوداؤد ۵: ۳۱، مشکاة (۱۵۶۹)۔

---

۱ بَشِّرُوا د فعل امر صیغه ده۔ بَشَّرَهُ تَبْشِيرًا: خوش خبري ورکول، خوش حالول۔ په قرآن مجید کښې دي چې: فَبَشَّرْنَاهَا بِإِسْحَاقَ: (سورة هود ۱۱: ۷۱) بَشِرَ (باب ضرب، نصر) و أَبْشَرَ وَاسْتَبْشَرَ: خوش حالیدل۔ د دې نه بَشَارَةٌ وتلې دې: زیری، خوشحالي۔ جمع ئې بَشَارَاتٌ او بَشَائِرُ ده۔
۲ لَا تُنَفِّرُوا: (فعل نهی) نَفَّرَهُ تَنْفِيرًا: ځغلول، نفرت پیدا کول۔ نَفَرَ (باب ضرب)۔ نَفَرَ مِنْ كَذَا: نفرت کول۔ عرب وائي: نَفَرْتُ مِنْ صُحْبَةِ فُلَانٍ: د فلاني د ملګرتیا نه م نفرت دې۔
۳ يَسِّرُوا: (فعل امر) يَسَّرَهُ لِفُلَانٍ: فلاني ته ئې اسانه کړه۔ يَسُرَ (باب کرم، سمع) يُسْرًا ويَسَرًا الْأَمْرُ: کار اسانیدل۔ د دې نه "يَسِيرٌ" وتلې دې: اسانتیا ته وئیلې شي۔
۴ لَا تُعَسِّرُوا: (فعل نهی) عَسَّرَ الْأَمْرَ: کار ګرانول۔ عَسَّرَ عَلَيْهِ: څوک تنګول۔ عَسِرَ (باب سمع کرم) عُسْرًا: ګرانیدل۔
۵ الْجَائِعُ: اوږې، جمع ئې جِيَعَانٌ ده۔
۶ عُودُوا: (فعل امر دې) عَادَ (باب نصر) عَوْدًا وعِيَادَةً الْمَرِيضَ: د بیمار تپوس کول۔ عَائِدٌ ترې نه صفت دې چې جمع ئې عُوَّادٌ او عُوَّدٌ ده۔
۷ فُكُّوا: فعل امر دې۔ فَكَّ (باب سمع) فَكًّا وفُكُوكًا: خلاصول۔ فَكَّ الرَّهْنَ وَافْتَكَّهُ: ګانړه خلاصول، آزادول۔ اِنْفِكَاكٌ: آزادیدل، جدا کیدل، خلاصیدل۔
۸ الْعَانِي: قیدی۔ جمع ئې عُنَاةٌ ده۔ د لفظ د "ی" سره په خپل اصل باندې دې چې تعلیل پکښې اوکړې شي نو بیا د "ی" نه بغیر راځي۔ د مؤنث د پاره عَانِيَةٌ راځي۔ د هغې جمع عَانِيَاتٌ او عَوَانٍ ده۔ عَنَا (باب نصر) عَنِيَ (باب سمع) عِنًا، فِي الْقَوْمِ: قیدی کیدل۔

۱۹ (۱۴۹) ـــ لَاتَسُبُّوا الدِّيْكَ[۱][۲] بانګی ته بد رد مه وائ فَإِنَّهُ يُوْقِظُ[۳] ځکه چه دے راویخوی (اوده لره) لِلصَّلوٰةِ د مانځه د پاره۔

ابوداود (۵۱۰۱)، مشکاة (۴۱۳۶)۔

۲۰ (۱۵۰) ـــ لَايَقْضِيَنَّ[۴] چرے دِ فیصله نه کوی حَكَمٌ[۵] څوک حاکم بَيْنَ اثْنَيْنِ د دوو کسانو په مینځ کښں وَهُوَ غَضْبَانُ[۶] په د اسے حال کښں چه هغه غصه وی

بخاری ۹، ۸۲، مشکاة (۳۷۳۱)۔

۲۱ (۱۵۱) ـــ إِيَّاكَ[۷] ځان بچ ساته وَالتَّنَعُّمَ[۸] د مزو چرچو (د ژوند) نه فَإِنَّ عِبَادَ اللهِ ځکه چه د الله تعالیٰ (خاص) بندګان لَيْسُوا بِالْمُتَنَعِّمِيْنَ مزو چرچو والا نه دی

الزهد للامام احمد (ص: ۱۱) مشکاة (۵۲۶۲)

---

[۱] لَاتَسُبُّوا :۔ (فعل نهی) سَبَّ (باب نصر) سَبًّا : بد رد ویل، تنقید کول، کنزل کول۔

[۲] اَلدِّيْكَ :۔ (بکسر الدّال) بانګی۔ جمع ئے دُيُوْكٌ، أَدْيَاكٌ او دِيَكَةٌ ده۔

[۳] يُوْقِظُ :۔ أَيْقَظَ، إِيْقَاظًا : ویښول، بیدارول۔ إِسْتَيْقَظَ : هغه بیدار شو۔

[۴] لَايَقْضِيَنَّ : (فعل نهی با نون ثقیله) قَضٰى (باب ضرب) قَضَاءً وقَضِيَّةً۔ قَضٰى بَيْنَ الْخَصْمَيْنِ : فیصله ئے اوکړه۔ قَضٰى الْأَمْرُ لَهُ : موافق فیصله کول۔ قَضٰى الْأَمْرُ عَلَيْهِ : مخالف فیصله کول دد نه اسم فاعل "قاضی" دے چه جمع ئے "قُضَاةٌ" ده۔ د قاضیانو مشر (چیف جسټس) ته أَقْضَى الْقُضَاةِ وئیلے شی۔

[۵] حَكَمٌ :۔ (بفتحتین) : فیصله کونکے، مفرد او جمع دواړو د پاره استعمالیګی۔

[۶] غَضْبَانُ : د صفت صیغه ده : غصے والا، غَضِبَ (باب سمع) غَضَبًا عَلَيْهِ : غصه کیدل۔

[۷] إِيَّاكَ : تحذیر (یره ول) دے۔ د اِتَّقِ په معنیٰ : ځان بچ ساته۔

[۸] تَنَعُّمَ :۔ مزے چرچے، د مزو چرچو ژوند۔ نَعِمَ (باب فتح، نصر، سمع) نِعْمَةً، الرَّجُلُ : حالت او ژوند ښه کیدل۔ نَعِمَ عَيْشُهُ، د هغه ژوند ښه شو، آسوده حال شو۔

٢٢ (١٥٢) — اِعْتَدِلُوْا میانه رَوی کوئ فِی السُّجُوْدِ په سجده کولو کښ وَلَا یَبْسُطْ[1] او نهٔ دِ خوروی اَحَدُکُمْ یو تن ستاسو نه ذِرَاعَیْهِ[2] خپلې دواړه لیچې اِنْبِسَاطَ الْکَلْبِ په شان (د لیچو) خورولو د سپی۔

بخاری ۱ : ۱۴۱، مسلم (۴۹۳) نسائی (۱۱۱۰)، مشکاة (۸۸۸)

٢٣ (١٥٣) — لَا تَسُبُّوا الْاَمْوَاتَ[3] مړو ته بد رد مهٔ وائی فَاِنَّهُمْ قَدْ اَفْضَوْا[4] ځکه چهٔ یقینًا هغوی رسیدلی دی اِلٰی مَا (بدلې د) هغې څهٔ ته قَدَّمُوْا چهٔ هغوی ځان نه مخکښې لیږلی دی۔

بخاری ۲ : ۱۲۹، ۸ : ۱۳۴، نسائی (۱۹۳۶)، ترمذی (۱۹۸۲)، مشکاة (۱۶۶۴)۔

٢٤ (١٥٤) — مُرُوْا اَوْلَادَکُمْ حکم کوی خپل اولاد ته بِالصَّلٰوةِ د مونځ (د کولو) وَهُمْ اَبْنَاءُ[5] په داسې حال کښ چهٔ بچی وی سَبْعِ سِنِیْنَ د اوو کلونو وَاضْرِبُوْهُمْ او وهئ هغوی عَلَیْهَا د دې (مانځه په نهٔ کولو) باندې وَهُمْ اَبْنَاءُ په داسې حال کښ چهٔ هغوی بچی وی عَشْرِ سِنِیْنَ د لسو کلونو وَفَرِّقُوْا بَیْنَهُمْ او جدا کړئ

---

[1] یَبْسُطُ : بَسَطَ (باب نصر) بَسْطًا : خورول، غوړول ۔ بَسَطَ الْیَدَ : لاس ئې خور کړلو۔

[2] ذراعیه : د ذِرَاعٌ تثنیه ده : لاس، مټ، لیچه ۔ دا اکثر مؤنث استعمالیږی ۔ خو کله کله مذکر هم استعمالولے شی ۔ جمع ئې اَذْرُعٌ او ذُرْعَانٌ ده ۔ ذَرَعَ (باب فتح) ذَرْعًا، الثَّوْبَ : کپړا په لاس چم کول، میچل ۔

[3] الاموات : جمع ده د «مَیِّتٌ»، او دا مخفف دے د «مَیْتٌ»، مړے ۔ جمع ئې اَمْوَاتٌ، مَوْتٰی، مَیِّتُوْنَ او مَیْتُوْن ده ؛ مؤنث ئې مَیِّتَةٌ او مَیْتَةٌ راځی ۔ مَاتَ یَمُوْتُ (باب نصر) مَاتَ، یَمَاتُ (باب سمع) مَاتَ یَمِیْتُ (باب ضرب) : مړه کیدل ۔ مَاتَ (باب نصر) مَوْتًا : مړ کیدل۔

[4] اَفْضَوْا : اَفْضٰی اِفْضَاءً ۔ اِلَیْهِ : څهٔ څیز ته رسیدل۔

[5] اَبْنَاءٌ : د «اِبْنٌ»، جمع ده ۔ ځوئے، اولاد، بچے ۔ بَنُوْنَ ئې هم جمع راځی ۔ تَبَنَّاهُ : د هغه نه ئې ځان له ځوئے جوړ کړو۔

دولئ ډيوبل نه فِي الْمَضَاجِعِ[1] په بسترو کښې۔

ابوداود (۴۹۵)، مسند احمد ۲: ۱۸۰، ۲: ۱۸۷، مشکاة (۵۷۲)

۲۵ (۱۵۵) — تَعَاهَدُوا الْقُرْآنَ[2] د قرآن حفاظت کوئ فَوَالَّذِي ځکه چه ځما د قسم دی په هغه ذات نَفْسِي بِيَدِهِ چه ځما نفس د هغه په اختيار کښې دے لَهُوَ چه خامخا دے (دا قرآن) اَشَدُّ تَفَصِّيًا[3] ډير زر (او زيات) جدا کيدونکے مِنَ الْاِبِلِ په په مقابله د جدا کيدلو د اوښانو فِي عُقُلِهَا[4] د هغوی د رسو نه۔

بخاری ۶: ۲۳۸، مسلم (۷۹۱)، مشکاة (۲۱۸۷)۔

۲۶ (۱۵۶) — اِتَّقِ يره کوه دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ د مظلوم د خيرو نه فَاِنَّهُ لَيْسَ ځکه چه يقينًا نيشته دے بَيْنَهَا دد ے (خيرو) په مينځ کښې وَبَيْنَ اللهِ او د الله تر مينځ حِجَابٌ[5] څه پرده۔

بخاری ۳: ۱۶۹، مسلم (۲۹)، مشکاة (۱۷۷۲)۔

۲۷ (۱۵۷) — لَاتَجْلِسُوا مه کينئ عَلَى الْقُبُوْرِ[6] په قبرونو باندِ وَلَا تُصَلُّوا اِلَيْهَا

---

[1] الْمَضَاجِعِ: د "مَضْجَعٌ" جمع ده: دد دے نکولو ځائے، د آرام کولو ځائے، بستره، کټ۔ ضَجَعَ (باب فتح) ضَجْعًا: دده (اړخ) لګول۔

[2] تَعَاهَدُوا: د فعل امر صيغه ده۔ تَعَاهَدَ وتَعَهَّدَ: حفاظت کول، نګرانی کول، خيال ساتل، ياد ساتل عَهِدَ: (باب سمع) عَهْدًا۔ الشَّيْئَ: د يو څيز حفاظت کول۔

[3] تَفَصِّيًا: تَفَصّٰى: خلاصيدل، جدا کيدل، تَفَصّٰى مِنَ الدَّيْنِ: هغه د قرض نه خلاصی شو۔ فصی (باب ضرب) فَصْيًا، جدا کيدل، بيليدل۔

[4] عُقُلٌ: د جمع دے د عُقْلَةٌ (بضم العين): د تړلو آله، رسئ، د اوښ مهار۔

[5] حِجَابٌ: پرده، حائل۔ جمع ئے حُجُبٌ ده۔ حَجَبَ (باب نصر) حَجْبًا: منع کول، پټيدل۔

[6] الْقُبُوْرُ: د "قَبْرٌ" جمع ده، د انسانانو د دفن کولو ځائے۔ قَبَرَ قَبْرًا۔ الْمَيِّتَ: مړے ئے دفن کړو۔

او دوی طرف ته موخ هم مه کوئ۔

مسلم (٩٧٢)، ابوداؤد (٣٢٢٩)، ترمذی (١٠٥٠)، مشکاة (١٦٩٨)۔

٢٨ (١٥٨) ــــ اِتَّقُوا اللّٰهَ د الله تعالیٰ نه یره کوئ فِیْ هٰذِهِ الْبَهَائِمِ[1] د دے چارپایانو په باره کښې الْمُعْجَمَةِ[2] چه گونگیان دی فَارْکَبُوْهَا نو په دوی باندِ شورلي کوئ صَالِحَةً په داسے حال کښې چه داجوګه وی (د شورلي) وَاتْرُکُوْهَا او پریږدئ دا صَالِحَةً په داسے حال کښې چه روغ رمټ وی۔

ابوداود (٢٥٤٨)، مشکاة (٣٣٧٠)۔

٢٩ (١٥٩) ــــ لَایَخْلُوَنَّ[3] چرته دِ نه جُدا کیږی رَجُلٌ یو (پردے) نارینه بِامْرَاَةٍ د (پردئ) زنانه سره وَلَاتُسَافِرَنَّ او چرته دِ سفر نه کوی اِمْرَاَةٌ یوه ښځه اِلَّا وَمَعَهَا مَحْرَمٌ[4] مګر په داسے حال کښې چه هغې سره بے پردے خپل وی۔

بخاری ٤: ٧٢، ٧: ٤٨، مسلم (١٣٤١)، مشکاة (٢٥١٣)۔

٣٠ (١٦٠) ــــ لَاتَتَّخِذُوْا مه جوړوئ ظُهُوْرَ دَوَابِّکُمْ[5] د خپلو څاروو ملاګانو نه

---

[1] اَلْبَهَائِمُ: د بَهِیْمَةٌ جمع ده. : د ګنګو، څاروی، ځناور۔

[2] اَلْمُعْجَمَةُ: مذکر ئے اَلْمُعْجَمُ دے: ګونګے، هغه څوک چه خپل مطلب نه شی بیانولے۔

[3] لَایَخْلُوَنَّ: نهی ده د نونِ ثقیله سره۔ خَلَا (باب نصر) خَلْوَةً، بِهٖ، الیه ـ معه: د چا سره جدائی او تنهایئ ته تلل، جُدا کیدل، یواځے کیدل۔ خَلَا الرَّجُلُ بِنَفْسِهٖ: سړے یواځے شو۔ ځانے له شو۔

[4] مَحْرَمٌ: (بفتح المیم) هغه خپلوان چه د هغه سره د چا نکاح ناجائز وی۔

[5] دَوَابٌّ: د دَابَّةٌ جمع دے: څاروے، د ګنګو، د څوزلئ ځناور۔ دا کلمه د مذکر او مؤنث دواړو د پاره یو شان استعمالیګی۔ دَبَّ (باب ضرب) دَبًّا وَدَبِیْبًا: په خلوړو تلل، تولند کول۔

مَنَابِرَ منبرونه -

ابوداؤد (٢٥٦٧)، مشكاة (٣٩١٦)-

٣١ (١٦١) لَاتَتَّخِذُوا مه جوړوئ شَيْئًا هغه څيز فِيهِ الرُّوحُ چه په هغې کښې ساه وی غَرَضًا نښنه (اوتک د ويشتلو)

مسلم (١٩٥٧)، نسائی (٤٤٤٣)، (٤٤٤٤)، مشكاة (٤٠٧٦)-

٣٢ (١٦٢) لَاتَجْلِسْ مه کينه بَيْنَ رَجُلَيْنِ د دوو سړو په مينځ کښې اِلَّابِاِذْنِهِمَا مګر د هغوئ په اجازت -

ابوداود (٤٨٤٤)، څوپه روايت کښې د «لَاتَجْلِسْ» په ځائے «لَايُجْلَسُ» دے يعنى نه دِ کينى - مشكاة (٤٧٠٤)-

٣٣ (١٦٣) بَادِرُوْا ديوبل نه ژر راندے شئ بِالصَّدَقَةِ خيرات (کولو) ته فَاِنَّ الْبَلَاءَ ځکه چه مصيبت لَايَتَخَطَّاهَا د هغې نه ديخوا قدم نه شى کيخودے (يا ديخوانه شى راوړيدلے)

المعجم الاوسط (٥٦٣٩)، السنن الكبرىٰ للبيهقى ٤: ١٨٩، شعب الايمان (٣٣٥٣)، ٣٣٥٤، مشكاة (١٨٨٧)-

---

ك مَنَابِرَ: د مَسَاجِدَ په وزن، د مِنْبَرٌ جمع دے - دا د ميم زير وئيلے شى دے د پاره چه د اسم آله سره ے مشابهت دے کښى د قاعدے لحاظ سره په واحد کښى هم د «ميم» زور پکار دے - نَبَرَ (باب ضرب) نَبْرًا- الشيئ: څه څيز پورته کول، اوچتول - نَبَرَ الْمُغَنِّىْ: سندرغاړى اواز تيز کړلو -

ك اَلرُّوْحُ: ساه، نفس، جوهر - قرآن کريم کښى دى: وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ ط (سورة بنى اسرائيل ١٧: ٨٥) او دوى ستانه د ساه په حقله تپوس کوى - جمع ئے اَرْوَاحٌ ده -

ك غَرَضًا، (بفتحتين): نښنه، تک - د مقصد او حاجت په معنىٰ هم راځى - جمع ئے اَغْرَاضٌ ده - اَغْرَضَ الْغَرَضَ: هغه نښنه صحيح او ويشتله -

ك بَادِرُوْا، فعل امر دے د بَادَرَ مُبَادَرَةً باب مُفَاعَلَةٌ نه، د يو څيز د پاره ديوبل نه مخکښى کيدل، مقابله کول -

ك اَلْبَلَاءُ: هغه غم چه د جود وِيلى کړى - ازميښت که د خيروى يا د شر، جمع ئے بَلَايَا ده -

دمشکاة نه علاوه په نورو کتابونو کښې د «یادونوا»، په ځائې «یاکروا» دے
چه معنٰی ئے ده : تلاوت اوکړئ۔
د المعجم الاوسط په سند کښې عیسیٰ بن عبدالله بن محمد نومے راوی دے
چه هغه ضعیف دے۔ (مجمع الزوائد ۳ : ۱۱۰) دد ے عیسیٰ په حقله امام ابن
حبّان وائی چه دخپل پلار او دنیکه په نوم ډیرغړن روایتونه بیانوی۔ اګر
چه دا راوی دا کار په خطا کوی۔ خو بیا هم ددے کار د وجے دده پیش کړے
شوے روایت ناقابل استدلال وی۔ (المجروحین ۲ : ۱۲۱، ۱۲۲)۔ د امام
بیهقي په دواړو سندونو کښې بشر بن عبید نومے راوی دے چه هغه ته
محدث صالح جزرة درواغژن وائی۔ (المقاصد الحسنة ص : ۲۳۲) پدے وجه
علامه ابن الجوزي دا روایت بے اصله ګنړی (الموضوعات ۲ : ۱۵۴)
امام منذری وائی : دا روایت موقوف دے (الترغیب والترهیب ۲ : ۲۰۱۹)
او حافظ ابن حجر وائی، دے روایت ته موفوع ویئیل «وهم» دے (المقاصد
الحسنة ص : ۲۳۳)۔

۳۴ ـــ (۱۶۴) لَا تُظْهِرِ مه ښکاره کوه اَلشَّمَاتَةَ[1] خوش حالی په مصیبت لِاَخِیْکَ
دخپل (مسلمان) رور فَیَرْحَمُهُ اللهُ کنی الله به په هغه باندے رحم اوکړی
وَیَبْتَلِیْکَ[2] او تا به په مصیبت اخته کړی۔

ترمذي (۲۵۰۶)، الترغیب والترهیب ۳ : ۳۱۰، مشکاة (۴۸۵۶)۔

۳۵ ـــ (۱۶۵) جَاهِدُوا[3] الْمُشْرِکِیْنَ جهاد کوئ مشرکانو سره بِاَمْوَالِکُمْ په
خپل مالونو سره وَاَنْفُسِکُمْ او په خپلو نفسونو سره وَاَلْسِنَتِکُمْ او په خپلو ژبو سره

ابوداؤد (۲۵۰۴)، نسائي (۳۰۹۶)، مشکاة (۳۸۲۱)۔

---

[1] اَلشَّمَاتَةَ : شَمِتَ (باب سمع) شَمَاتَةً، دچا په مصیبت خوشحالیدل۔ اسم صفت ئے شَامِتٌ دے چه
جمع ئے شُمَّاتٌ ده، مؤنث ئے شَامِتَةٌ دے چه د هغے جمع شَوَامِتُ استعمالیګی۔
[2] وَیَبْتَلِیْکَ : اِبْتَلٰی اِبْتِلَاءً، از مصیبت کول، تکلیف کښې اچول، مجرد کښې د باب نصر او سمع نه
راځی۔
[3] جَاهِدُوْا : فعل امر دے، جَاهَدَ مُجَاهَدَةً وَجِهَادًا، پوره طاقت خرچ کول، کوشش کول۔

٣٦ (١٦٦) ـــ اِتَّقُوا النَّارَ ځان د اور نه بچ کړئ وَلَوْ بِشِقِّ[1] تَمْرَةٍ[2] اګر که د کهجورې په یوه ټکړه باندې وي فَمَنْ لَّمْ یَجِدْ نو چا چه دا (هم) نه مونده فَبِكَلِمَةٍ طَيِّبَةٍ نو (ځان دې) په یوه ښه وینا رکولو بچ کړي)

بخاري ۴ : ۲۴۰، ۸ : ۱۴، مسلم (۱۰۱۶)، نسائی (۲۵۵۳)، مشكاة (۵۸۵۷)

٣٧ (١٦٧) ـــ اِغْتَنِمْ[3] خَمْسًا پنځه څیزونه غنیمت او ګڼره قَبْلَ خَمْسٍ مخکښې د پنځو څیزونو نه شَبَابَكَ[4] خپله ځواني قَبْلَ هَرَمِكَ[5] مخکښې د خپلې بوډاوالي نه وَصِحَّتَكَ او د خپل وجود روغوالے قَبْلَ سَقَمِكَ[6] مخکښې د خپلې بیمارۍ نه وَغِنَاكَ او خپله مالداري قَبْلَ فَقْرِكَ مخکښې د خپلې غریبۍ نه وَفَرَاغَكَ او خپل اوزګاروالے قَبْلَ شُغْلِكَ مخکښې د خپلې مشغولتیا نه

---

[1] شِقٌّ : (بالکسر) د یو څیز نیمه حصه، نیم طرف، نیمه غاړه. عرب وائي چه : اَلْمَالُ بَيْنِيْ وَبَيْنَكَ شِقٌّ : مال به ځما او ستا تر مینځه په نیمه وي. شَقَّ (باب نصر) شَقًّا : ماتول، شلول. شَقَّ عَصَا الْقَوْمِ هغه د قوم د لږ ماته کړله. جُدائي کړه.

[2] تَمْرَةٌ : کهجوره. جمع ئې تَمْرٌ، تَمَرَاتٌ، تُمُوْرٌ او تُمْرَانٌ راځي. تَمَرَ (باب نصر) تَمْرًا وَتَمَرَةً : کهجورې خوړول. اَتْمَرَ الرُّطَبُ : کهجورې او چیدل.

[3] اِغْتَنِمْ : فعل امر. اِغْتَنَمَ وَتَغَنَّمَ وَاسْتَغْنَمَ الشَّيْءَ : غنیمت ګڼل، فائده ګڼل. غَنِمَ (باب سمع) غُنْمًا : مفت حاصلول، غنیمت حاصلول. په قرآن عزیز کښې دي چه : وَاعْلَمُوْا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ (سورة الانفال : ۸ : ۴۱). یعنې ښه پوهه شئ چه یقینًا هغه څه چه تاسو ئې حاصلوئ په غنیمت کښې.

[4] شَبَابٌ : (بالفتح) ځواني، آغاز، شروع. شَبَّ (باب ضرب) شَبَابًا وَشَبِيْبَةً. اَلْغُلَامُ : د هلک ځوان کیدل وَمِنْ شَبَّ اِلَى دَبَّ : د ځوانۍ نه تر بوډاوالي. شَابٌّ د هغه سړي ته وئیلے شي چه ځوان وي. جمع ئې شُبَّانٌ ده.

[5] هَرِمَ : (باب سمع) هَرَمًا : ډیر بوډا کیدل، کمزورے کیدل. د صفت د پاره هَرِمٌ (بکسر الراء) راځي. چه جمع ئې هَرْمُوْنَ ده.

[6] سَقِمَ : (باب سمع) سَقُمَ (باب کرم) سَقَمًا وَسَقَامَةً : بیماریدل. بیمار ته سَقِیْمٌ وئیلے شي. قرآن پاک کښې راځي : اِنِّيْ سَقِیْمٌ (سورة الصافات ۳۷ : ۸۹). زه بیمار وغه یم. د سَقِیْمٌ جمع سِقَامٌ او سُقَمَاءُ ده.

وَحَيَاتَكَ او خپل ژوند قَبْلَ مَوْتِكَ مخکښې د خپل مرګ نه.

المستدرك ۴ : ۳۰۶، الترغيب والترهيب ۴ : ۲۵۱، مشكاة (۵۱۷۴).

# لَيْسَ النَّاقِصَة

(د بیان د لَيْسَ نَاقِصَه د ے)

١ (١٦٨) — لَيْسَ الشَّدِيْدُ[1] نه دی پهلوان (بهادر) بِالصُّرَعَةِ[2] په پرزولو إِنَّمَا الشَّدِيْدُ الَّذِیْ یقیناً پهلوان (څو) هغه (څوك) د ے يَمْلِكُ نَفْسَهٗ چه هغه خپل ځان په قابو کښې ساتی عِنْدَ الْغَضَبِ د غصے په وخت کښې.

بخاری ۸ : ۳۴، مسلم (۲۶۰۹)، مشكاة (۵۱۰۵).

٢ (١٦٩) — لَيْسَ مِنَّا مَنْ هغه څوك څوك (د مونږ) نه نه د ے. خَبَّبَ[3] اِمْرَاَةً چه هغه یوه ښځه وړانه کړی عَلٰى زَوْجِهَا د خپل خاوند د پاره اَوْ عَبْدًا او یا یو مریے (وران کړی) عَلٰى سَيِّدِهٖ د خپل مالك د پاره.

ابوداود (۲۱۷۵)، المستدرك ۲ : ۱۹۶، مشكاة (۳۶۶۲).

٣ (١٧٠) — لَيْسَ مِنَّا مَنْ هغه څوك څوك (د مونږ) نه نه د ے لَمْ يَرْحَمْ چه هغه

---

[1] اَلشَّدِيْدُ: پهلوان، مضبوط، بهادر، تکړه، قوی، سخت، کلك، په قرآن مجید کښې دی چه: اِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيْدٌ (سورة البروج ۸۵ : ۱۲) یقیناً ستا د رب ګرفت ډیر سخت او مضبوط د ے. جمع ئے اَشِدَّاءُ او شُدُوْدٌ ده. شَدَّ (باب ضرب ونصر) شَدًّا. الشيءُ: څه څیز مضبوطول.

[2] اَلصُّرَعَةُ: بل را پرزول. صَرَعَ (باب فتح) صَرْعًا: را پرزول.

[3] خَبَّبَ: دهوکه کول، ورانول، خرابول. خَبَّبَ عَلٰى فُلَانٍ صَدِيْقَهٗ: د فلانی دوست ئے خراب کړو.

رحم نهٔ کوی **صَغِيْرَنَا** څمونږ په وړوکی **وَلَمْ يُوَقِّرْ**[1] او (هغه څوک چه) عزت نهٔ کوی **كَبِيْرَنَا** څمونږ د مشر **وَيَأْمُرْ** او (هغه څوک چه) حکم (نهٔ) کوی **بِالْمَعْرُوْفِ** د نیکئ کولو **وَيَنْهَ** او (هغه څوک چه) منع (نهٔ) کوی **عَنِ الْمُنْكَرِ** د بدئ نه۔

ترمذی (۱۹۲۱)، مشکاة (۴۹۷۰)۔

۴ (۱۷۱)ـــ **لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالَّذِيْ** هغه څوک (کامل) مؤمن نهٔ دے **يَشْبَعُ** چه هغه ځان موړ کړی **وَجَارُهٗ جَائِعٌ** او گاونډی ئے اوږے وی **إِلٰى جَنْبِهٖ**[2] د دهٔ په خوا کښ۔

الادب المفرد (۱۱۲)، المعجم الاوسط (۳۳۸۹)، مشکاة (۴۹۹۱)۔

۵ (۱۷۲)ـــ **لَيْسَ الْمُؤْمِنُ** نهٔ دی (کامل) مؤمن **بِالطَّعَّانِ**[3] د ډیر عیبونه بیانوونکے **وَلَا بِاللَّعَّانِ**[4] او نهٔ د ډیر بد ویونکے **وَلَا الْفَاحِشِ**[5] او نهٔ بد ژبه ویناکوونکے **وَلَا الْبَذِيِّ**[6] او نهٔ بکواس کوونکے۔

---

[1] وَقَّرَ تَوْقِيْرًا: ډیر عزت کول۔ فُلَانٌ وَقَّرَ شَيْخَهٗ: فلانی د خپل استاذ تعظیم اوکړو۔

[2] جَنْبٌ: (بفتح الجیم) اړخ، طرف، خوا۔ جمع ئے اَجْنَابٌ او جُنُوْبٌ ده۔ قَعَدْتُّ إِلٰى جَنْبِ فُلَانٍ: د فلانی خواکښ کیناستم۔ په قرآن مجید کښ دی چه: فَتُكْوٰى بِهَا جِبَاهُهُمْ وَجُنُوْبُهُمْ (سورة التوبه ۹: ۳۵) لړ دوئ تندی او اړخونه به په دے باندے داغلے شی۔ جَانَبَهٗ: د چا نزدے کیناستل۔

[3] اَلطَّعَّانُ: د مبالغے صیغه ده: ډیر بد ویونکے۔ هُوَ طَعَّانٌ فِيْ اَعْرَاضِ النَّاسِ: هغه د خلقو په عزت ډیر حملے کوونکے دے۔ طَعَنَ (باب فتح ونصر) طَعْنًا: نیزه چلول، زخمی کول، عیب لګول۔ طَعَنَ فِي الرَّجُلِ: په چا باندے عیب لګول۔ طَعَنَ عَلَيْهِ: په چا الزام لګول، چاله پېغور ورکول۔

[4] لَعَّانٌ: د مبالغے صیغه ده: ډیر لعنت ویونکے، ذلیلوونکے۔ لَعَنَ (باب فتح) لَعْنًا: بد رد ویل۔ لَعِيْنٌ هم د دے نه وتلے دے: ذلیل او خوار، بے عزته۔

[5] اَلْفَاحِشُ: د حد نه تیروتونکے، بد ه خبره کوونکے۔ فَحُشَ (باب کرم) فُحْشًا: ناکاره کیدل، خرابیدل، غلطیدل۔ اَفْحَشَ وَتَفَاحَشَ: بده خبره کول۔

[6] اَلْبَذِيُّ (بتشدید الیاء) د صفت صیغه ده: بکواس کوونکے۔ جمع ئے اَبْذِيَاءُ ده۔ او مؤنث ئے بَذِيَّةٌ ده۔ بَذَا (باب نصر) بَذْوًا اَبْذٰى علیه: فضول بکواس کول۔ بَذُوَ (باب کرم) بَذَاءً وَبَذَاءَةً: بد خُلقه خوږ ژول۔

ترمذی (۱۹۷۷)، السنن الکبریٰ للبیهقی ۱۰: ۱۹۳، ۲۴۲، مشکاة (۴۸۴۷)۔

۶ (۱۷۳) — لَيْسَ الْوَاصِلُ[1] نهٔ دے صِله رحمی کوونکے بِالْمُكَافِئِ[2] بدل خلاصوونکے۔ وَلٰكِنَّ الْوَاصِلَ الَّذِي یکن صِله رحمی کوونکے خو هغه څوک دے اِذَا قُطِعَتْ رَحِمُهٗ[3] چهٔ کله هغه سره رشته ختم کړے شی وَصَلَهَا هغهٔ ئے بیا جوړه کړی۔

بخاری ۸: ۷، ابوداود (۱۶۹۷)، ترمذی (۱۹۰۸)، مشکاة (۴۹۲۳)۔

۷ (۱۷۴) — لَيْسَ الْغِنٰى نهٔ ده (اصلی) مالداری عَنْ كَثْرَةِ الْعَرَضِ[4] د ډیر دنیادی سامانونو د وجے وَلٰكِنَّ الْغِنٰى لاکن اصلی مالداری غِنَى النَّفْسِ[5] د زړهٔ مالداری ده

بخاری ۸: ۱۱۸، مسلم (۱۰۵۱) مشکاة (۱۵۷۰)۔

۸ (۱۷۵) — لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِي هغه څوک دروغژن نهٔ دے يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ چهٔ اصلاح راولی د خلقو ترمینځ وَيَقُولُ خَيْرًا او د خیر خبره کوی وَيَنْمِي[6] خَيْرًا او نسبت کوی د خیر (او پهٔ دے سلسله کښ څهٔ خلافِ واقعه خبره اوکړی)

بخاری ۳: ۲۴۰، مسلم (۲۶۰۵)، مشکاة (۴۸۲۵)۔

۹ (۱۷۶) — لَيْسَ شَيْءٌ نهٔ دے هیڅ څیز أَكْرَمَ عَلَى اللّٰهِ زیات عزتمن اللّٰه ته مِنَ الدُّعَاءِ د دُعا نه۔

ترمذی (۳۳۷۰)، ابن ماجه (۳۸۲۹)، مشکاة (۲۲۳۲)۔

---

[1] اَلْوَاصِلُ: فاعل، تعلق جوړ دونکے۔ وَصَلَ (باب ضَرَب) وَصْلًا وَصِلَةً: تعلق جوړ دل، روغ ساتل
[2] اَلْمُكَافِئُ: (اسم فاعل) كَافَأَ مُكَافَاةً: بدله ورکول، برابری کول۔
[3] رِحْمٌ او رَحِمٌ: دواړه یو شان لوستلے شی: خپلولی، رشته داری، بچه دانی۔ د امؤنث استعمالیګی۔ جمع ئے اَرْحَامٌ ده۔ پهٔ قرآن مجید کښی دی: واتقوا اللّٰه الذی تساءلون به والارحام (سورة النساء: ۱) یعنی د هغهٔ اللّٰه نه اویرېږئ چهٔ تاسو د هغه پهٔ نوم دیو بل نه سوالونه کوئ او ویرېږئ د رشتے د ختمولو نه۔
[4] عَرَضٌ: (بفتحتین): سامان، اسباب۔ جمع ئے عُرُوْضٌ ده۔
[5] اَلنَّفْسُ: زړهٔ او روح ته وئیلے شی۔ جمع ئے نُفُوْسٌ ده۔
[6] نَمٰى: (باب ضرب) نَمْيًا: اوچتول، نسبت کول۔ دلته رو ستنئ معنیٰ مراد ده۔

۱۰ (۱۲۷) — لَیْسَ مِنَّا[1] زمونږ (د فرمانبردارو نه) نه دے مَنْ هغه څوک ضَرَبَ الْخُدُوْدَ[1] چه اننګی وهی وَشَقَّ[2] الْجُیُوْبَ[3] (ګریوانونه شلوی وَدَعَا[4] بِدَعْوَی الْجَاهِلِیَّةِ[5] او د جاهلیّت دعوے کوی.

بخاری ۲: ۱۰۳، ۱۰۴، ۴: ۲۲۳، مسلم (۱۶۵)، مشکاة (۱۷۲۵)

۱۱ (۱۲۸) — لَیْسَ الْخَبَرُ نه دے خبر (یعنی اِطّلاع) کَالْمُعَایَنَةِ[6] په شان د سترګو د لیدو

مسند احمد ۱: ۲۷۱، موارد الظمآن (۲۰۸۷)، مشکاة (۵۷۳۸)

---

[1] الْخُدُوْدَ، د خَدٌّ جمع ده. اننګی ته وئیلے شی.

[2] شَقَّ، شَقَّ یَشُقُّ شَقًّا، شلول، څیرے کول.

[3] الْجُیُوْبَ، د جَیْبٌ جمع ده، ګریوان. جَابَ (باب ضرب) جَیْبًا. الْقَمِیْصَ، قمیص کښی جیب جوړول.

[4] دَعَا، مصدر ئے دُعَاءٌ دے: چاته فریاد کول، غوښتل، رابلل، درخواست او منت کول، زاری کول. دَعَا (باب نصر) دُعَاءً دَدَعْوَةً. دَعَالَهٗ، دچا د ښے دعا کول. دَعَا عَلَیْهِ او دَعَا بِالشَّرِّ، دچا د بد د دُعَاء کول. دَعَا اِلَی شَیْءٍ: دعوت ورکول، ترغیب ورکول، محرک کول. دَعَا اِلَی وَلِیْمَةٍ، د واده د ډوډئ دعوت ورکول.

[5] اَلْجَاهِلِیَّةُ، نادانی، ناپوهی، د اسلام د راتللو نه مخکښی چه په دنیا کښی کوم حالات وُو هغے ته هم جاهلیّة وئیلے شی. ددے نه نحل جَهِلَ د (باب سمع) نه راځی. جَهْلًا وجَهَالَةً: نه پوهیدل، ناپوهی اَن پره کیدل. جَهِلَ عَلَیْهِ: بے علمه کیدل، بے وقوفه کیدل. صفت ترے نه "جَاهِلٌ" راځی. چه جمع ئے "جُهَّلٌ" او جُهَلَاءُ ده.

[6] الْمُعَایَنَةِ، عَایَنَ مُعَایَنَةً، مشاهده کول، په خپلو سترګو لیدل. فارسی کښی مَتَلْ دے چه، شُنیده که بود مانندِ دیده، یعنی اوریدل د لیدلو غوندے نه دی.



# اَلشَّرْطُ وَالْجَزَاءُ

(د بیان د مثالونو د شرط او د جزاء دے)

۱ (۱۷۹) — **مَنْ تَوَاضَعَ** چا چه ځان کمزورے اوګڼړلو **لِلّٰهِ** د الله د رضٰی د پاره) دوج **رَفَعَهُ اللّٰهُ** الله به هغه پورته کړی (یعنی عزت به ورکړی)، **وَمَنْ تَكَبَّرَ** او چا چه ځان لوئ اوګڼړلو **وَضَعَهُ اللّٰهُ** الله به هغه ذلیل کړی۔

ابن ماجه (۴۱۷۶)، مسند احمد ۳: ۷۶، الإحسان فی تقریب صحیح ابن حبان (۵۶۷۸)، مشکاة (۵۱۱۹)

د دے روایت سوکزی راوی دراج بن سمعان ابو السمح المصری دے او د هغهٔ اُستاذ ابو الهیثم دے۔ د دراج په حقله امام ابوداؤد وائی: د ده عام احادیث مستقیم دی ماسیوا د هغه احادیثو نه کوم چه د ابو الهیثم نه نقل کړی (تهذیب التهذیب ۳: ۱۸۹)

امام احمد فرمائی: د دے راوی روایتونه منکر دی (العلل ومعرفة الرجال ۳: ۱۱۶۱ - رقم النص: ۲۳۸۴)

امام نسائی فرمائی، دا راوی قوی نهٔ دے (الضعفاء والمتروکین ص: ۱۰۲، الترجمة: ۱۹۱) خو په مسند احمد ۱: ۴۴ او د امام طبرانی المعجم الصغیر ۱: ۲۳۱ کښی دا روایت په صحیح سند سره په دا سے الفاظو کښی نقل دے۔ یقول الله تبارک وتعالٰی: من تواضع لی هکذا رفعته هکذا۔ لهٰذا دا روایت صحیح دے۔ والله اعلم۔

۲ (۱۸۰) — **مَنْ لَمْ يَشْكُرِ النَّاسَ** څوک چه د خلقو شکریه نه ادا کوی **لَمْ يَشْكُرِ اللّٰهَ** هغه د الله تعالٰی شکریه (هم) نه ادا کوی۔

ترمذی (۱۹۵۵)، مسند احمد ۲: ۲۵۸، ۳: ۳۲، ۴: ۲۷۸، ۴: ۳۷۵، مشکاة (۳۰۲۵)

---

له تَوَاضُعٌ، تَوَاضَعَ: هغه ځان کمزورے اوګڼړلو۔ وَضَعَ (باب ضرب) وَضْعًا: کمول، ذلیله کول کمزورے کول، اَلشَّيْءُ مِنْ يَدِهٖ: څه څیز د لاس نه غورزول۔

۳ (۱۸۱) — مَنْ لَمْ يَسْئَلِ اللّٰهَ څوک چه د الله تعالیٰ نه سوال نه کوی يَغْضَبْ[1] عَلَيْهِ (نو الله تعالیٰ) هغه ته غصه کیږی.

ترمذی (۳۳۷۳)، مشکاة (۲۲۳۸)

۴ (۱۸۲) — مَنْ دَلَّ[2] چاچه ښودنه اوکړه عَلٰى خَيْرٍ د نیکئ فَلَهٗ نو شته دے هغه لره مِثْلُ اَجْرِ فَاعِلِهٖ په شان د اجر د کوونکی د هغه.

۵ (۱۸۳) — مَنِ انْتَهَبَ[3] چاچه داکه واچوله نُهْبَةً د مال لوټ کولو فَلَيْسَ مِنَّا نو هغه زمونږ (د ملګرو نه) نه دے.

ترمذی (۱۱۲۳)، (۱۶۰۱) ابن ماجه (۳۹۳۵)، مشکاة (۲۹۴۷).

۶ (۱۸۴) — مَنْ صَمَتَ[4] څوک چه خاموش (غلے شو) نَجَا هغه نجات (خلاصے) اوموند.

ترمذی (۲۵۰۱)مسند احمد ۲ : ۱۵۹، ۲ : ۱۷۷، المعجم الاوسط (۱۹۵۴)، مشکاة (۴۸۳۶).

علامه مناوی لیکی : حافظ زین الدین عراقی وئیلی دی چه : د امام ترمذی سند کښې ځکه غونډ کمزوری دے ځکه چه د ابن لهیعه عنعنه ده پکښې او ابن لهیعه مُدلّس دے او د مدلّس راوی معنعن روایت قابل قبول نه وی. خو د امام طبرانی سند کښې دا کمزوری نیشته ځکه چه ابن لهیعه پکښې اَخْبَرَنِیْ وائی (فیض القدیر ۶ : ۱۷۱)

۷ (۱۸۵) — مَنْ حَمَلَ چاچه پورته کړه عَلَيْنَا السِّلَاحَ[5] په مونږ پسے وسله فَلَيْسَ مِنَّا نو هغه زمونږ نه نه دے.

بخاری ۹ : ۵، ۶ : ۶۲، مسلم : (۶۱)، (۱۶۳)، (۶۴)، مشکاة (۳۵۲۰).

---

[1] يَغْضَبُ : غَضِبَ (باب سمع) غَضْبًا، عَلَيْهِ : غصه کیدل. صفت ترے غَضِبٌ، غَضُبٌ او غَضْبَانٌ راځی او مؤنث ترے غَضْبٰی دہ. غَضِبَ لِفُلَانٍ : د چا د پاره غصه کیدل. غَضِبَ مِنْ لَاشَیْءٍ : بخیره ځنے د بے غصه کول.

[2] دَلَّ (باب نصر) دِلَالَةً وَ دَلَالَةً، اِلَى الشَّیْءِ وَعَلَيْهِ : لاره ښودل، د رهنمائی کول.

[3] اِنْتَهَبَ : باب افتعال دے نَهَبَ (باب فتح، نصر، سمع) نَهْبًا : لوټ، داکه اچول. نُهْبَةٌ د دے نه و تلے دے : لوټ مال

[4] صَمَتَ : (باب نصر) صَمْتًا : خاموشه کیدل، غلے کیدل، بے ځایه نه تکیا کیدل.

[5] اَلسِّلَاحُ : بکسر السین : وسله. د مذکر او مؤنث د واړو د پاره یو شان استعمالیګی. اَسْلِحَةٌ، سُلُحٌ او سُلْحَانٌ ئے جمع راځی. تَسَلَّحَ : وسله بند کیدل.

۸ (۱۸۶) — مَنْ جَهَّزَ[۱] چا چه سامان (دجهاد) ورکړو غَازِيًا یو غازی لـه فِي سَبِيلِ اللّٰهِ (چه غزا کوی د) الله په لار کښې فَقَدْ غَزَا نو یقینًا ده هُم غزا اوکړه وَمَنْ خَلَفَ او څوک چه خلیفه شو غَازِيًا د یو غازی فِي أَهْلِهِ د هغه د کور والو فَقَدْ غَزَا نو یقینًا ده هم غزا اوکړه

بخاری ۴: ۳۲، مسلم (۸ ۱۹۵)، ترمذی (۱۶۲۸)، (۱۶۳۱)، مشکاة (۳۷۹۲).

۹ (۱۸۷) — مَنْ يُحْرَمُ هغه څوک چه بند کړی الرِّفْقَ[۲] نرمی (او مهربانی) يُحْرَمُ الْخَيْرَ هغه به د هر خیر نه محروم کړے شی.

مسلم (۲۵۹۲)، ابوداؤد (۴۸۰۹)، مشکاة (۵۰۶۹).

۱۰ (۱۸۸) — مَنْ سَكَنَ څوک چه میشته شو الْبَادِيَةَ[۳] په بیدیا کښې جَفَا[۴] سخت زړے به شی وَمَنِ اتَّبَعَ او څوک چه پسے شو الصَّيْدَ[۵] د ښکار غَفَلَ بے پرواه به شی وَمَنْ أَتَى السُّلْطَانَ او څوک چه بادشاه ته ځی راځی افْتُتِنَ[۶] په فتنه کښې به واچولے شی

ابوداؤد (۲۸۵۹)، ترمذی (۲۲۵۶)، نسائی (۴۳۰۹) مشکاة (۳۷۰۱)

---

۱ جَهَّزَ: سامان تیارول. جَهیز هغه سامان چه ناوے ئے د پلار د کوره راوړی. تَجْهِيْز: مړی لمبول او د ښخولو د پاره تیارول. جهاز: د تجارت سامان. وَلَمَّا جَهَّزَهُمْ بِجَهَازِهِمْ: (سورة یوسف ۲ : ۵۹) او کله چه ئے د هغوئ سامان تیار کړو.

۲ الرِّفْقَ: رفق (باب سمع، کرم، نصر) رِفْقًا بِهٖ، لَهٗ، عَلَيْهِ: نرمی کول، مهربانی کول.

۳ الْبَادِيَةَ: ځنګل، صحرا او بیدیا. جمع ئے بَادِيَاتٌ او بَوَادِ راځی.

۴ جَفَاء (باب نصر) جَفْوًا و جَفَاءً: سختی کول، زړه سختیدل.

۵ الصَّيْدَ: ښکار. جمع ئے صُيُوْدٌ ده. صَادَ (باب ضرب) صَيْدًا: ښکار کول.

۶ افْتُتِنَ: د باب افتعال نه د ماضی مجهول صیغه ده: مبتلا کیدل، فتنه کښې اخته کیدل، فَتَنَ (باب ضرب) فِتْنَةً. فُلَانًا: څوک ګمراه کول، بے لارے کول، آزمایل.

۱۱ (۱۸۹) ـــــ مَنْ صَلّٰى چا چه مونځ اوکړو يُرَائِي[1] په داسې حال کښې چه رياء ئې کوله فَقَدْ اَشْرَكَ[2] نو يقيناً ده شرک اوکړو وَمَنْ صَامَ او چا چه روژه اونيوله يُرَائِي په داسې حال کښې چه رياء ئې کوله فَقَدْ اَشْرَكَ نو يقيناً ده شرک اوکړو وَمَنْ تَصَدَّقَ او چا چه خيرات اوکړو يُرَائِي په داسې حال کښې چه رياء ئې کوله فَقَدْ اَشْرَكَ نو يقيناً ده شرک اوکړو.

مسند احمد ۴: ۱۲۶، المستدرک ۴: ۳۲۹، مشكاة (۵۳۳۱)

د دې روايت په سند کښې شهر بن حوشب لوئې راوي دے. د هغه په باره کښې امام ابن عدي وائي: د حديث په معامله کښې قوي نه دے. روايت ئې ناقابل استدلال او ناقابل اعتماد دی. (الكامل في ضعفاء الرجال ۴: ۱۳۵۸)

۱۲ (۱۹۰) ـــــ مَنْ تَشَبَّهَ[3] چا چه مشابهت اوکړو (په عقيده او عمل کښې) بِقَوْمٍ د يو قوم سره فَهُوَ مِنْهُمْ نو دے د هغوئ (د دې لے) نه دے.

مسند احمد ۲: ۵۰، ۲: ۹۲، ابو داؤد (۴۰۳۱)، مشكاة (۴۳۴۷).

۱۳ (۱۹۱) ـــــ مَنْ رَغِبَ[4] چا چه مخ واړولو عَنْ سُنَّتِي زما د طريقې نه فَلَيْسَ مِنَّا نو زما (د فرمان بردارو) نه نه دے.

بخاری ۷: ۲، مسلم (۱۴۰۱) نسائی (۳۲۱۷)، مشكاة (۱۴۵).

۱۴ (۱۹۲) ـــــ مَنْ اَرَادَ الْحَجَّ څوک چه د حج اراده اوکړی فَلْيُعَجِّلْ نو خامخا تلوار دې کوی

---

[1] يُرَائِي: رَاءٰى، مُرَاءَاةً و رِيَاءً: خلقو ته ښودنه، رياکاری کول. رَاٰى (باب فتح) رُؤْيَةً ليدل، کتل.

[2] اَشْرَكَ: اِشْرَاكًا. اُشْرِكَ فِي اَمْرِهٖ: هغه ئې په کار کښې د ځان سره ملګرے کړو. اَشْرَكَ بِاللّٰهِ: الله سره د برخې خاوند جوړ کړو. د مشرک لفظ هم د دې نه وتلے دے: د برخې مالک ګرځول کے شَرِكَ (باب سمع) شِرْكًا وَشِرْكَةً: شريکتی کيدل، د برخې خاوند جوړيدل.

[3] تَشَبَّهَ: اَشْبَهَ وَشَابَهَ، د چا په شان کيدل، مشابهت پيدا کول.

[4] رَغِبَ: (باب سمع) رَغْبًا و رَغْبَةً، رَغِبَ عَنْهُ: د هغه نه ئې مخ واړولو. رَغِبَ فِيْهِ: د هغه سره ئې مينه پيدا شوه.

ابوداؤد (١٢٣٢)، المستدرك ١: ٤٤٨، ٤٣٩، مشكاة (٢٥٢٣)-

١٥ (١٩٣) — مَنْ غَشَّنَا[١] چاچه موږ سره دهوکه اوکړه فَلَيْسَ مِنَّا نو هغه زموږ (د ملګرو) نه نه دے-

مسلم (١٦٤)، مسند احمد ٣ : ٤٩٨، مشكاة (٣٥٢)-

١٦ (١٩٤) — مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ چاچه په ما باندې درود اووئيلو وَاحِدَةً يو ځل صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ الله تعالیٰ به په هغه برکتونه نازل کړی عَشْرًا لس ځله

مسلم (٤٠٨)، نسائی (١٢٩٦)، مشكاة (٩٢١)-

١٧ (١٩٥) — مَنْ عَزّٰى[٢] چاچه تسلّی ورکړه ثَكْلٰى[٣] هغه ښځې له چه د هغې بچے روک شوے (یا مړ شوے) وی كُسِيَ[٤] هغه ته به اغوستولے شی بُرْدًا[٥] یو خاص څادر فِي الْجَنَّةِ په جنت کښې-

ترمذی (١٠٧٦)، مشكاة (١٧٣٨)،

امام ترمذی وائی : دا حدیث غریب (یعنی ضعیف) دے. او دده سند قوی نه دے

خو ابن ماجه (١٦٠١)، (١٦٠٢)، او د خطیب بغدادی د تاریخ بغداد (٧ : ٣٩٧) د بعضې

روایتونو نه ترمخه دا روایت د "حسن" درجے ته وررسی- والله اعلم-

---

[١] غَشَّ (باب نصر) غِشًّا : دهوکه کول، مغالطه کول، دهوکه ورکونکی ته غَاشٌّ وئیلے شی-

[٢] عَزّٰى تَعْزِيَةً : تعزیت کول، همدردی کول، تسلّی ورکول- عَزِيَ (باب سمع) عَزَاءً : په مصیبت صبر کول، زغم کول، برداشت کول-

[٣] ثَكْلٰى : د صفت صیغه ده، د مؤنث د پاره راځی. هغه ښځې ته وئیلے شی چه د هغې ماشوم یا روک شی او یا مړ شی. جمع ئے ثَوَاكِلَ او ثَكَالٰى راځی. ثَكِلَتْ وَاَثْكَلَتِ الْاُمُّ وَلَدَهَا : د مور نه خپل ماشوم روک شو-

[٤] كُسِيَ : د ماضی مجهول صیغه ده. كَسَا (باب نصر) كَسْوًا : اَلثَّوْبَ : جامے بل ته اغوستول. كَسِيَ (باب سمع) كَسًا وَاكْتَسٰى وَتَكَسّٰى : پخپله جامے اغوستول. كِسَاءٌ هم د دے نه وتلے دے. څادر ته وئیلے شی- جمع ئے اَكْسِيَةٌ ده-

[٥] بُرْدًا (بضم الباء) څادر، چارخانه داره کپړا. جمع ئے بُرُودٌ، اَبْرَادٌ او اَبْرُدٌ راځی-

١٨ (١٩٦) ــــ **مَنْ** هغه څوک **يُرِدِ اللّٰهُ بِهٖ** چه الله او غواړي هغه ته **خَيْرًا** خير رسول **يُفَقِّهْهُ**[ل] هغه له پوهه درکړي **فِي الدِّيْنِ** په دين کښي.

بخاري (١: ٢٧) ٣ :١٠٣ :٩ :١٢٥، مسلم (١٠٣٧)، مشکاة (٢٠٠).

١٩ (١٩٧) ــــ **مَنْ قَتَلَ** چا چه قتل کړو **مُعَاهِدًا**[ل] هغه غير مسلم چه هغه لوظ د امن سره د او سيد و کړے وي. **لَمْ يَرِحْ**[ل] نه به محسوس وي د ا (قاتل) **رَائِحَةَ الْجَنَّةِ** بوي د جنت

بخاري (٩: ١٢)، ابن ماجه (٢٦٨٦)، مشکاة (٣٤٥٢).

٢٠ (١٩٨) ــــ **مَنْ صُنِعَ اِلَيْهِ** هغه څوک چه او کړے شو هغه سره **مَعْرُوْفٌ** نيکي **فَقَالَ لِفَاعِلِهٖ** نو هغه او ئيل کونکي د دے (نيکئ) ته **جَزَاكَ اللّٰهُ خَيْرًا** الله د تاله خه بدله درکړي **فَقَدْ اَبْلَغَ**[ل] نو يقينًا ده خه کوشش او کړو **فِي الثَّنَاءِ**[ل] په تعريف کولو کښي.

ترمذي (٢٠٣٥)، عمل اليوم والليلة للنسائي (١٨٠)، مشکاة (٣٠٢٤).

٢١ (١٩٩) ــــ **مَنْ بَنٰى**[ل] چا چه جوړ کړو **لِلّٰهِ** د الله (د رضا) د پاره **مَسْجِدًا** جمات

---

ل يُفَقِّهْهُ، فَقَّهَ وَاَفْقَهَ فُلَانًا: پوهول، د دين پوهه ورکول. فَقِهَ (باب سمع) فِقْهًا وتَفَقَّهَ: ځان پوهول د دين پوهه حاصلول. فَقِيْهٌ هم د دے نه د تلے دے، هغه چا ته د ئيلے شي چه په دين ښانډ پوهيګي. جمع ئے فُقَهَاءُ ده.

ل مُعَاهِدًا: د اسم فاعل صيغه ده. عَاهَدَ مُعَاهَدَةً: د امن وعده کول، دوست جوړيدل. عَهِدَ (باب سمع) عَهْدًا، الشَّيْءَ: د څه څيز حفاظت کول.

ل يَرِحْ: رَاحَ (باب ضرب) رِيْحًا، الشَّيْءَ: د څه څيز بوي محسوسول. رَائِحَةٌ هم د دے نه وتلے دے بوي ته د ئيلے شي. چه جمع ئي رَوَائِحُ او رَائِحَاتٌ ده.

ل اَبْلَغَ: پوره کوشش کول، انتها ته رسول. بَلَغَ (باب نصر) بُلُوْغًا: رسيدل.

ل اَلثَّنَاءُ: تعريف کول، خه صفت کول. جمع ئے اَثْنِيَةٌ ده. اَثْنٰى عَلَيْهِ: د چا ستاينه کول

ل بَنٰى: (باب ضرب) بَنْيًا وَبِنَاءً وَبُنْيَانًا، اَلْبَيْتَ: تعمير کول، آباد ے کول. بِنَاءٌ د دے نه د تلے دے عمارت (آبادي) ته د ئيلے شي. جمع ئے اَبْنِيَةٌ ده او جمع الجمع ئے اَبْنِيَاتٌ ده.

بَنَى اللّٰهُ لَهٗ جوړ به کړي الله دده د پاره بَيْتًا يو عظيم الشان كور فِي الْجَنَّةِ

په جنّت کښې.

بخاری ۱ ، ۱۲۲ ، مسلم (۵۳۳) ، مشكاة (۶۹۷).

۲۲ (۲۰۰) مَنْ كَانَ څوك چه وي ذَا وَجْهَيْنِ دوه مخونو والا (یعنی دوه ژبے) فِي الدُّنْيَا په دنیا کښې كَانَ لَهٗ وي به دده د پاره يَوْمَ الْقِيٰمَةِ د قیامت په ورځ لِسَانَانِ دوه ژبے مِنَ النَّارِ د اور.

ابوداؤد (۴۸۷۳) ، الاحسان بتقریب صحیح ابن حبان (۵۷۵۶) ، الدارمی (۲۷۶۴) ، السنن الکبری للبیهقی (۱۰ : ۲۴۶) ، مشكاة (۴۸۴۶).

۲۳ (۲۰۱) مَنْ رَأٰى عَوْرَةً[1] چا چه څه (ځائے یا کار) شرم اولید و فَسَتَرَهَا[2] نو په هغې ئے پرده واچوله كَانَ كَمَنْ وي به دے (یا : شولو دے) په شان د هغه چا (په ثواب کښې) اَحْيَا چه هغه ژوندئ را ایستلي وي مَوْءُوْدَةً[3] يوه ژوندئ ښخه کړے شوے جینۍ.

ابوداؤد (۴۸۹۱) نصب الرایه (۳ : ۳۰۷) مشكاة (۴۹۸۴)

۲۴ (۲۰۲) مَنْ خَزَنَ[4] چا چه بنده اوساتله (د فضول خبرونه) لِسَانَهٗ خپله ژبه سَتَرَ اللّٰهُ الله تعالیٰ به پرده واچوی عَوْرَتَهٗ د هغه په شرم وَمَنْ كَفَّ

---

[1] عَوْرَةٌ : د شرم ځائے ، هر هغه څیز چه د هغې نه شرم کولے شی. هغه اندامونه چه د شرم او حیا د وجے پټ ساتلے شی. جمع ئې عَوْرَاتٌ ده. په قران مجید کښې راځی چه : اَوِ الطِّفْلِ الَّذِيْنَ لَمْ يَظْهَرُوْا عَلٰى عَوْرٰتِ النِّسَآءِ (سورة النور ۲۴ : ۳۱) یا هغه ماشومان چه هغوئ نه وی پوهه شوی د زنانو د پردے په ځایونو باندې (نوکه د هغوئ نه پرده نه وی نو خیر دے)

[2] سَتَرَ (باب نصر ، ضرب) سَتْرًا : پرده اچول ، پټول. سِتْرٌ د دے نه وتلے دے. پردے ته وئیلے شی. چه جمع ئے سُتُوْرٌ او اَسْتَارٌ ده.

[3] مَوْءُوْدَةٌ : د اسم مفعول صیغه ده. ژوندئ ښخه کړے شوے. د دے مطلب د پاره وَئِيْدٌ او وَئِيْدَةٌ هم استعمالیږی. وَءَدَ (باب ضرب) وَءَدَ الْبِنْتَ : جینئ ژوندئ ښخول.

[4] خَزَنَ (باب نصر) خَزَنَ اللِّسَانَ ژبه بنده ساتل. خَزَنَ الْمَالَ : مال جمع کول.

او چا چه بنده او ساتله ا د چلولو نه) غَضَبَهُ
خپله غصه كَفَّ اللّٰهُ عَنْهُ الله به د ده ګانه بند
او ساتی عَذَابَهُ خپل عذاب يَوْمَ الْقِيٰمَةِ د قيامت
په ورځ وَمَنِ اعْتَذَرَ او چا چه پښيمانی ښکاره
کړه اِلَى اللّٰهِ الله ته قَبِلَ اللّٰهُ عُذْرَهُ
الله تعالى به دهغه پښيمانی قبوله کړی (يعنی معافی
به ورته او کړی)

شعب الايمان (۸۳۱۱) مشکاة (۱۲۱ : ۵)

امام هيثمی وائی د دے په سند کښی
الربيع بن سليم، الازدی الخلقانی نومے راوی
دے او هغه ضعيف دے. (مجمع الزوائد ۱۰ : ۲۹۸)
امام ابن معين د دے راوی په حقله وائی "ليس
بشيئٍ" دے (التاريخ ۲ : ۱۶۱، النص ۱۵۰۶)
امام ابن ابی حاتم وائی "شيخ" دے (الجرح والتعديل
۳ : ۴۶۳) (الترجمة : ۲۰۸۰) او د شيخ مطلب امام يحيی بن
سعيد القطان څخه دا سے بيان کړے دے: هغه راوی چه:
روايتونه خو ورسره وی ليکن علم ورسره نه وی
(الضبط الرايه ۴ : ۲۳۳)

۲۵ (۲۰۳) مَنْ سُئِلَ د چا نه چه تپوس او کړے شو عَنْ عِلْمٍ د هغې علم عَلِمَهٗ چه دے په هغې پوهیدو ثُمَّ كَتَمَهٗ[1] بیا دهٔ هغه پټ کړو اُلْجِمَ[2] دهٔ ته به واګے واچولے شي يَوْمَ الْقِيٰمَةِ د قیامت په ورځ بِلِجَامٍ[3] مِّنْ نَّارٍ واګے د اُور۔

ابوداؤد (۳۶۵۸)، ترمذی (۲۶۴۹)، ابن ماجه (۲۶۴) (۲۶۵) مشکاة (۲۲۳)

۲۶ (۲۰۴) مَنْ اُفْتِيَ[4] چا له چه فتوی ورکړے شوه بِغَيْرِ عِلْمٍ بغیر د علم نه كَانَ اِثْمُهٗ[5] دی به ګناه د هغه عَلٰى مَنْ اَفْتَاهُ په هغه چا باندې چه هغه له ئے فتوی ورکړے وی وَمَنْ اَشَارَ او چا چه مشوره ورکړه عَلٰى اَخِيْهِ خپل وروړته بِاَمْرٍ دیو (داسے) کار يَعْلَمُ چه دے پوهیدو اَنَّ الرُّشْدَ[6] چه بے شکه خیر (او کامیابی) فِيْ غَيْرِهٖ د دے نه سیوا په بل (کار) کښې دے فَقَدْ خَانَهٗ نو یقینًا دهٔ د هغه سره خیانت اوکړو۔

ابوداؤد (۳۶۵۷)، مشکاة (۲۴۲)

---

[1] كَتَمَ (باب نصر) كَتْمًا وكِتْمَانًا: پټول، پټ ساتل. كَتَمْتُ مِنْ زَيْدٍ الْحَدِيْثَ: ما خبره د زید نه پټه او ساتله - په قرآن عزیز کښې راغلي چه، وَيَكْتُمُوْنَ مَا اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ (سورة النساء ۴: ۳۷) یعنی او پټوی (منافقان) هغه څهٔ چه الله دوی له ورکړیدی د فضل خپل نه۔

[2] اُلْجِمَ اُلْجِمًا، اَلدَّابَّةَ: واګے اچول.

[3] لِجَامٍ: (بکسر اللام) واګے. جمع لُجُمٌ او لُجُمٌ ده.

[4] اُفْتِيَ (صیغه فعل ماضی مجهول) اَفْتَى اِفْتَاءً: فتوی ورکول. فُلَانًا فِي الْمَسْئَلَةِ: مسئله خودل.

[5] اِثْمٌ: (بکسر الهمزة) ګناه، جرم، ناجائزه کار. جمع ئې آثَامٌ ده. اَثِمَ (باب سمع) اِثْمًا: ګناه کول. صفت ترے اَثِيْمٌ او اٰثِمٌ راځی.

[6] اَلرُّشْدُ: (بضم الراء) هدایت، نیکی. رَشَدَ (باب نصر) رُشْدًا: هدایت موندل. رَشِيْدٌ: هغه چا ته وئیلے شی چه په هدایت باندې روان وی۔

۲۷ (۲۰۵) — مَنْ وَقَّرَ چاچه تعظیم اوکړو صَاحِبَ بِدْعَةٍ دبدعت والا فَقَدْ أَعَانَ نو یقیناً ده امداد اوکړو عَلٰی هَدْمِ الْاِسْلَامِ د اسلام په نړه ولو کښې

شعب الایمان (۹۴۶۴) حلیة الاولیاء (۵ : ۲۱۸)، مشکاة (۱۸۹)

دده روایت مطلب ملا علی قاری الحنفی داسے لیکلے دے : کان قامر له وصدّره فی مجلسہٖ أو خدمه من غیر عذرٍ (مرقاة ۱ : ۴۳۳) یعنې د بدعتی تعظیم کول دادی چه دهغه دعزت دپاره دخپل ځائې نه پاسی یا هغه د مجلس مشر کړی یا بغیر د څهٔ عذر نه دهغه خدمت کوی.

۲۸ (۲۰۶) — مَنْ تَحَلّٰی چاچه ځان ښکاره کړو بِمَا په هغه (رنګ) کښې لَمْ يُعْطَ چه هغه له نه دے ورکړے شوے کَانَ کَلَابِسٍ دے په شان د اغوستونکی د ثَوْبَیْ زُوْرٍ د دوو د دروغژنو جامو

ترمذی (۲۰۳۴)، مشکاة (۳۰۲۳)

۲۹ (۲۰۷) — مَنْ اَحْدَثَ چاچه اضافه اوکړه فِیْ اَمْرِنَا هٰذَا زمونږ په دے دین کښې مَا هغه (اضافه) لَيْسَ مِنْهُ چه د دینه نه وی فَهُوَ رَدٌّ

---

۱ وَقَّرَ تَوْقِیْرًا . الشیخ : دچا تعظیم او تکریم کول.

۲ بِدْعَة : (بکسر الباء) نوے چیز، په دین کښې نوے رسم او داسے اضافه چه د هغې څه بنیاد نهٔ وی جمع ئې بِدَعٌ ده بَدَعَ (باب فتح) بَدْعًا : ایجاد کول. امام راغب د بدعت شرعی تعریف داسے کوی: البدعت فی المذهب ایراد قول لم یستن قائلها وفاعلها فیه بصاحب الشریعة و أماثلها المتقدمة و اصولها المتقنة (المفردات فی غریب القرآن ص : ۳۹) یعنی : په شریعت کښې د بدعت اطلاق په داسے قول یا (فعل) باندې کیګی چه د هغې ویونکے یا کونکے په دغه کارکښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نقش قدم باندې روان نهٔ وی او په شریعت کښې د هغې څه مثال هم نهٔ وی موجود او نهٔ د هغې کونکے د شریعت په مضبوطو اصولو روان وی.

۳ هَدَمَ : (باب ضرب) هَدْمًا : غورزول، ماتول.

۴ تَحَلّٰی : خائسته کیدل، ډډلی کیدل، ځان ظاهرول، ښکاره کول.

۵ لَابِسٌ : (اسم فاعل) لَبِسَ، لُبْسًا : اغوستل.

۶ زُوْرٌ (بضم الزای) : دروغ، بے بنیاده، باطل.

لو دغه اضافه او اضافه کونکے ، رَدٌّ مَردود دے۔

بخاری (۳: ۳۴۱) مسلم (۸/۲۱۲) ابو داؤد (۴۶۰۶) ابن ماجه (۱۴) مشکاة (۱۴۰)

۳۰ (۲۰۸) مَنْ تَمَسَّكَ چا چهٔ کلکه منګلے او نګولے بِسُنَّتِیْ حُما په طریقه عِنْدَ فَسَادِ اُمَّتِیْ حُماد امت د فساد په زمانه کښې فَلَهٗ لو شته دے د ده دپاره اَجْرُ مِائَةِ شَهِیْدٍ اجر د سلو شهیدانو۔

الکامل فی الضعفاء (۲: ۷۳۹) المعجم الاوسط (۱۰/۵۴۱۴) حلیة الاولیاء (۸: ۲۰۰) مشکاة (۱۷۶)

دا روایت سخت ضعیف دے . د ابن عدی په سند کښې حسن بن قتیبة لوے راوی دے . حافظ ذهبیؒ هغه ته (هَالِكٌ) وائی او امام ازدی ورته "واهی الحدیث" وائی . (میزان الاعتدال ۱: ۵۱۹)

امام عقیلی وائی "کثیر الوهم" دے (الضعفاء الکبیر ۱: ۲۴۱)

او د حسن بن قتیبة د استاد چه په ابن منذر نومیکی د اسماء رجال په کتابونو کښې څه درک نه لګی . د طبرانی او ابو نعیم په سند کښې محمد بن صالح العدوی لوے راوی دے د هغه په حقله حافظ هیثمی وائی :

مانهٔ دے لیدلی چه د دے راوی ترجمه چا لیکلی وی (مجمع الزوائد ۱: ۱۷۲)

۳۱ (۲۰۹) مَنْ یَضْمَنْ[1] څوك چه ضمانت راکړی ماته مَا د هغه اندام بَیْنَ لِحْیَیْهِ چه د هغهٔ د دواړو جامو ترمینځه دے (یعنی: د ژبے) وَمَا او د هغه (اندام) بَیْنَ رِجْلَیْهِ چه د هغهٔ د دواړو خپو ترمینځه دے (یعنی د دواړو پښو اندام) اَضْمَنُ لَهُ الْجَنَّةَ څه ضمانت ورکوم هغه له د جنّت

(بخاری ۸: ۱۲۵) السنن الکبری للبیهقی (۸: ۱۶۶) ، مشکاة (۴۸۱۲)

---

[1] یَضْمَنْ ، ضَمِنَ (باب سمع) ضَمْنًا و ضَمَانًا: ضامن کیدل ، ذمه وار کیدل۔

۳۲ (۲۱۰) ـــــ مَنْ شَهِدَ چاچه گواهي اوکړه أَنْ لَّآ اِلٰهَ چهٔ نيشته دے اختيار
مند د نفع او د نقصان اِلَّا اللّٰهُ سِوا د اللّٰه نه بل څوک وَاَنَّ مُحَمَّدًا
او (د اګواهي ئے هم وکړه چهٔ) بے شکه محمد صلی الله عليه وسلم رَسُوْلُ
اللّٰهِ د الله تعالیٰ رسول دے حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ النَّارَ الله تعالیٰ
به حرام کړي په دهٔ بانديٰ اور (د دوزخ)۔

مسلم (۴۷) ترمذی (۲۶۳۸) مشکاة (۳۶)

۳۳ (۲۱۱) ـــــ مَنْ أَحَبَّ چاچهٔ د بل سړي مينه اوکړه لِلّٰهِ د الله د پاره
وَاَبْغَضَ او (چاچه) د بل سړي دشمني اوکړه لِلّٰهِ د الله تعالیٰ د پاره
وَاَعْطٰى او څه څيز ئے (چاله) ورکړو لِلّٰهِ د الله تعالیٰ د پاره وَمَنَعَ
او (د چانه ئے څه څيز) منع کړو لِلّٰهِ د الله تعالیٰ د پاره فَقَدِ اسْتَكْمَلَ
الْاِيْمَانَ نو يقيناً دهٔ خهٔ کوشش اوکړو د ايمان د مکمل کيد لو۔

ابوداؤد (۴۶۸۱)، مشکاة (۳۰)

۳۴ (۲۱۲) ـــــ مَنْ اَنْظَرَ[1] چاچهٔ مهلت ورکړو مُعْسِرًا[2] يو تنګ دست ته اَوْ
وَضَعَ عَنْهُ يا ئے لرے کړو د هغه نه بوجه (د قرض) اَظَلَّهُ اللّٰهُ دے به
الله تعالیٰ د عذاب نه بچ کړي، فِيْ ظِلِّهٖ (د خپل رحم) په سوري کښې۔

مسلم (۳۰۰۶)، ترمذی (۱۳۰۶) مشکاة (۲۹۰۴)

۳۵ (۲۱۳) ـــــ مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ چاچه په ما بانديٰ دروغ جوړ کړل مُتَعَمِّدًا قصداً

---

[1] اَنْظَرَ اِنْظَارًا، اَلدَّيْنَ: د قرض په ادا کولو کښې مهلت ورکول۔ په قرآن عزيز کښې دی چهٔ اِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِيْنَ۔ (سورة الاعراف ۷: ۱۵) تهٔ ئے د مهلت ورکړو شوو نه۔
[2] مُعْسِرًا: تنګ دست، غريب؛ اسم فاعل دے

فَلْيَتَبَوَّأْ[1] لو دے دِ خامخا اوګرزی مَقْعَدَهٗ[2] خپل د ورتلو ځائے مِنَ النَّارِ د اور نه۔

بخاری (۱: ۳۸)، (۲: ۱۰۲)، (۳: ۲۰۷)، (۸: ۵۴)، مسلم (۳)، (۴)، مشکاۃ (۱۹۸)۔

۳۶ (۲۱۴) ـــ مَنْ خَرَجَ څوک چه (باهر) او وتلو فِىْ طَلَبِ الْعِلْمِ د علم په طلب کښی فَهُوَ فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لو د ے دَ اللّٰه تعالىٰ په لار کښی د ے حَتّٰى يَرْجِعَ تر واپس کيدلو پورے۔

ترمذی (۲۶۴۷)، مشکاۃ (۲۲۰)۔

امام ترمذی وائی، دا روایت حسن او غریب دے۔ او بعضو خلقو دا موقوف نقل کړے دے۔ د دے اختلاف د وجے چه آیا دا روایت موقوف دے یا مرفوع دے۔ دا روایت ضعیف شو۔

بله دا چهٔ د دے راوی ابوجعفر الرازی د حافظے د خراب والی د کبله ضعیف دے او دریمه وجه دا چه، د دے یو راوی خالد بن یزید العتکی دے او د هغه دیر روایتونه داسے دی چه د هغه نور ملګری ئے د دوٴ په شان نه بیانوی۔
او امام عقیلی د دغے په مثال کښی هم دا روایت پیش کړے دے۔ (الضعفاء الکبیر ۲: ۱۷)

۳۷ (۲۱۵) ـــ مَنْ اَذَّنَ چا چه اَذان اوکړ د سَبْعَ سِنِيْنَ او ووکاله مُحْتَسِبًا[3] د ثواب په اُمید كُتِبَ لَهٗ د ده د پاره به اوليكلے شی بَرَاءَةٌ مِّنَ النَّارِ نجات د اور نه۔

ترمذی (۲۰۶)، مشکاۃ (۶۶۴)

---

[1] فَلْيَتَبَوَّأْ، تَبَوَّءَ: د استوګنے د پاره ځائے جوړول. په قرآن مجید کښی دی چهٔ: وَالَّذِيْنَ تَبَوَّءُو الدَّارَ وَالْاِيْمَانَ (سورۃ الحشر: ۵۹: ۹) او هغه کسان چه حاصل کړیدی کورونه او ایمان د مخکښی نه۔

[2] مَقْعَدٌ، د ناستے ځائے۔ ټکانه، جمع ئی مَقَاعِدُ دهٔ۔ قَعَدَ (باب نصر) قُعُوْدًا: کیناستل۔

[3] مُحْتَسِبًا (اسم فاعل) اِحْتَسَبَ: شمیرل۔ اِحْتَسَبَ عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرًا: د اللّٰه تعالىٰ نه د ثواب یوخ اُمید ساتل۔ حَسِبَ (باب سمع، حَسِبَ) حَسْبًا وحُسْبَانًا: ګمان کول۔

امام ترمذی وائی: دا روایت غریب (یعنی ضعیف) دے ځکه چه: دَدے په سند کښی جابر بن یزید الجعفی نومی راوی دے. او محدثین هغه ته ضعیف وائی.
ددے راوی په حقله امام ابن ابی لیلی وائی: ځما دِ په الله تعالیٰ قسم دے چه دروغژن وُو. او دا ئی عقیده وه چه علی رضی الله تعالیٰ عنهٗ به دوباره دنیا ته راځی.
او امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی: ما تراوسه د جابر جُعفی غوندے دروغژن نه دے لیدلے. ما به چه کله هغه ته خپله رائے پیش کړه نو هغه به په هغے حدیث پیش کړو. او هغه ګمان داوو چه ګوندے ډیر شو زره احادیثو عالم دے (تهذیب الکمال ۴: ۴۶۸، ۴۶۹)

۳۸ (۲۱۶) — مَنْ تَرَكَ الْجُمُعَةَ چا چه جمعه پریخودله مِنْ غَيْرِ ضَرُوْرَةٍ بغیر د ضرورت نه كُتِبَ مُنَافِقًا دے به منافق اولیکلے شی فِیْ کِتَابٍ په یو داسے کتاب کښی لَا يُمْحٰى چه هغه نهٔ ورانولے شی وَلَا يُبَدَّلُ او نهٔ بدلولے شی.

مسند الشافعیؒ (ص: ۶۰)، مشکاة (۱۳۷۹)

دَدے په سند کښی ابراهیم بن محمد بن ابی یحییٰ الاسلمی نومے راوی دے.
د هغه په حقله امام ابن معین وائی: دروغژن او رافضی وُو. (التاریخ ۲ : ۱۳)
امام نسائی وائی: متروک الحدیث وُو (الضعفاء والمتروکین (ص: ۳۰)
امام یحیٰی بن سعید القطان وائی: په دهٔ کښی درے ناکاره خویونه وُو (۱) دروغژن وُو (۲) د تقدیر منکر وُو (۳) رافضی وُو.
امام بندار وائی: د ځان نه به ئے احادیث جوړول. (تهذیب التهذیب ۱: ۱۴۳، ۱۴۴)
لهذا دا روایت موضوعی شو.

---

لے يُمْحٰى: د مضارع مجهول صیغه ده. مَحَا (باب نصر) مَحْوًا ورانول. قرآن مجید کښی دی چه: يَمْحُوا اللّٰهُ مَا يَشَاءُ وَيُثْبِتُ، (سورة الرعد ۱۳: ۳۹) ورانوی الله تعالیٰ څهٔ چه اوغواړی او برقراره ساتی څهٔ چه اوغواړی.

۳۹ (۲۱۷) مَنْ مَاتَ څوک چه مړشو وَلَمْ يَغْزُ او حال دا دے چه دۀ غزا نۀ وی کړے وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهٖ نَفْسَهٗ او نۀ ئے چرته په خيال کښې دا (غزا) راغلے وی مَاتَ (نو) دے مړشو عَلٰى شُعْبَةٍ مِّنْ نِّفَاقٍ د منافقت په يو اړخ باندے۔

مسلم (۱۹۱۰)، ابو داؤد (۲۵۰۲)، نسائی (۳۰۹۷)، مشکاة (۳۸۱۳)

۴۰ (۲۱۸) مَنْ لَّمْ يَدَعْ څوک چه نۀ پريږدی قَوْلَ الزُّوْرِ د دروغو وينا وَالْعَمَلَ بِهٖ او عمل کول په دے باندے فَلَيْسَ لِلّٰهِ حَاجَةٌ نو الله ته هيڅ حاجت نيشته فِیْ دد ے (خبرے) اَنْ يَّدَعَ چه دے پريږدی طَعَامَهٗ خپل خوراک وَشَرَابَهٗ او خپل څښاک۔

بخاری (۳: ۳۳)، (۸: ۲۱)، ابوداؤد (۲۳۶۲)، ترمذی (۷۰۲)، مشکاة (۱۹۹۹)

۴۱ (۲۱۹) مَنْ لَبِسَ چا چه واغوستله ثَوْبَ شُهْرَةٍ[1] جامه د مشهورتيا فِی الدُّنْيَا په دنيا کښې اَلْبَسَهُ اللّٰهُ الله به هغه ته واغوستوی ثَوْبَ مَذَلَّةٍ[2] جامه د رسوائی يَوْمَ الْقِيٰمَةِ د قيامت په ورځ۔

ابوداؤد (۴۰۲۹)، ابن ماجه (۳۶۰۶)، مسند احمد (۲: ۹۲) مشکاة (۴۳۴۶)۔

۴۲ (۲۲۰) مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ چا چه دين طلب کړلو۔ لِيُجَارِیَ[3] بِهٖ د دے د پاره چه مقابله به کوی په هغے الْعُلَمَآءَ د عالمانو۔

---

[1] شُهْرَةٌ: مشهورتيا۔ اِشْتَهَرَ بِكَذَا: د فلانی کار د وجے مشهورشو۔
[2] مَذَلَّةٌ: ذَلَّ (باب ضرب) ذُلًّا وَذِلَّةً وَمَذَلَّةً: ذليله کيدل، رسوا کيدل۔ صفت ترينه ذَلِيْلٌ دے چه جمع ئی اَذِلَّاءُ، اَذِلَّةٌ، او ذِلَالٌ دۀ۔
[3] لِيُجَارِیَ: جَارَاهُ مُجَارَاةً: په تللو کښې مقابله کول۔ دلته مطلق مقابله مراد دۀ۔ جَرٰی (باب ضرب) جَرْيًا: جاری کيدل، منډه وهل، مقابله کول۔

أَوْ لِيُمَارِيَ[1] یاد ے د پاره چه جګړه به کوی په هغے اَلسُّفَهَاءَ د بے وقوفانو

سره أَوْ لِيَصْرِفَ[2] بِهِ یاد ے د پاره چه راوا ړوی په هغے وُجُوهَ النَّاسِ

مخونه د خلقو إِلَيْهِ خپل طرف ته أَدْخَلَهُ اللّٰهُ النَّارَ داخل

به کړی الله هغه لره اور ته ۔

ترمذی (۲۶۵۴) مشکاة (۲۲۵)

۲۲۱ — مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا چا چه علم اوکړو مِمَّا د هغے (علم) نه يُبْتَغٰى بِهِ

چه طلب کولے شی په هغے سره وَجْهُ اللّٰهِ د الله رضامنتیا لَا يَتَعَلَّمُهُ

دے نه حاصلوی (دا علم) إِلَّا لِيُصِيبَ بِهِ مګر د دے د پاره چه حاصل کړی

په د ے باندے عَرَضًا[3] مِّنَ الدُّنْيَا سامان د دُنیا لَمْ يَجِدْ دے به چرے

اونه موی عَرْفَ الْجَنَّةِ خوشبوئی د جنت يَوْمَ الْقِيٰمَةِ د قیامت

په ورځ ۔

ابوداؤد (۳۶۶۴) ابن ماجه (۲۵۲) مسند احمد ۲ : ۳۲۸ ، مشکاة (۲۲۷)

۲۲۲ — مَنْ اَتٰى عَرَّافًا[4] څوک چه نجومی له لاړشی فَسَاَلَهُ لو د هغه نه تپوس

او کړی عَنْ شَيْءٍ د څه څیز په باره کښی (د غیبو) لَمْ يُقْبَلْ لَهُ

---

[1] مَارٰى، مُمَارَاةً و مِرَاءً : جدال او جګړه کول ، بحث او مناظره کول ۔ په قرآن مجید کښی دی چه فَلَا تُمَارِ فِيهِمْ (سورة الکهف ۱۸ : ۲۲) لو ته بحث مکوه د دوی په باره کښی ۔ مَرٰى (باب ضرب) مَرْيًا ، حَقَّهُ ، د حق نه انکار کول ۔

[2] أَوْ لِيَصْرِفَ صَرَفَ (باب ضرب) صَرْفًا : اړول ، بل طرف ته کول ۔ په قرآن مجید کښی دی چه ، صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوبَهُمْ (سورة التوبه ۹ : ۱۲۷) الله د هغوی زړونه د حق نه واړول ۔

[3] عَرْفٌ ، (بفتح العین وسکون الراء) اصل معنیٰ ئے بوئی د ے که خوږ وی او که تریخ ۔ لیکن زیات استعمال ئے د خوږ بوئی د پاره کیږی ۔ مَا أَطْيَبَ عَرْفَهُ ، څومره خوږ بوئی ئے د ے ۔

[4] عَرَّافًا ۔ عَرَّاف : نجومی ، کاهن ، ترویتی ۔ عَرَفَهُ الْاَمْرَ : خبرور کول ۔ عَرَفَ (باب ضرب) عِرْفَةً و عِرْفَانًا ، پیژندل ۔

نه به شي قبول لے دده ئ نه صَلوٰةُ اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةٍ مونځ د
څلویښتو شپو (اوورځو)

۽ مسلم (۲۲۳۰) السنن الکبری للبیهقی (۸: ۱۳۸)، مشکاة (۴۵۹۵)

۴۵ (۲۲۳)—— مَنِ اسْتَعَاذَ[1] مِنْكُمْ څوك چه ستاسو نه پناهي اوغواړي
بِاللّٰهِ دالله په نوم فَاَعِيْذُوْهُ نو هغه له پناهي ورکړئ وَمَنْ
سَأَلَ بِاللّٰهِ اوچا چه سوال اوکړو د الله تعالیٰ په نوم فَاَعْطُوْهُ نو
هغه له (څه څیز) ورکړئ وَمَنْ دَعَاكُمْ اوچا چه تاسو له دعوت درکړو
فَاَجِيْبُوْهُ نو د هغه دعوت قبول کړئ وَمَنْ صَنَعَ اِلَيْكُمْ مَعْرُوْفًا
اوچا چه تاسو سره څه نیکی اوکړه فَكَافِئُوْهُ نو هغه ته بدله ورکړئ
فَاِنْ لَمْ تَجِدُوْا نو که چرے تاسو ئه مومئ مَا تُكَافِئُوْهُ هغه څه
چه د هغه بدله پرے ورکړئ۔ فَادْعُوْا لَهُ نو د هغه د پاره دعا اوکړئ حَتّٰى
تَرَوْا ترڅو چه ستاسو یقین راشی اَنْ قَدْ كَافَئْتُمُوْهُ چه یقینا تاسو
د هغه بدل خلاص کړو۔

ابوداؤد (۵۱۰۸)، (۵۱۰۹)، مسند احمد (۲: ۹۹)، مشکاة (۱۹۴۳)

۴۶ (۲۲۴)—— مَنْ رَأَى مِنْكُمْ چاچه اولیدلو په تاسو کښی مُنْكَرًا[2] څه خلاف
شریعت (کار یا خبره) فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ خو خامخا هغه د په خپل لاس

---

[1] اِسْتَعَاذَ وتَعَوَّذَ، پناهي اغستل، غوښتل۔ فَاِذَا قَرَأْتَ الْقُرْاٰنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ (سورة النحل (۱۶: ۹۸)، کله چه د قرآن د لوستلو اراده اوکړے نو د شیطان رټلی شوی نه د الله سره پناه اوغواړه۔ اَعَاذَ، اِعَاذَةً، پناهي ورکول۔

[2] مُنْكَرٌ، د معروف متضاد او مقابل دے۔ ناجائزه اوغیرشرعی دینا یا کارته وئیلے شی. جمع ئے مُنْكَرَاتٌ د ه نَكِرَ (باب سمع) نُكْرًا: ناواقفه کیدل، نه پیژندل۔

(یعنی په زور) باندِ بدل کړی. فَإِنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ نو که چرے (دد ے) وس
نه لری فَبِلِسَانِهِ نو په خپله ژبه دِ هغه (منع کړی) فَإِنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ
نو که چرے (ددے) وس (هم) نه لری فَبِقَلْبِهِ نو (کم ازکم) په خپل زړهٔ
کښی دِ هغه ته (بد اوګوری) وَذٰلِكَ او دا آخرنئ مرتبه أَضْعَفُ الْإِيْمَانِ
د ایمان ډیرهٔ کمزورے درجه ده.

مسلم (۲۸)، ترمذی (۲۱۷۲)، نسائی (۵۰۰۸)، (۵۰۰۹) مشکاة (۵۱۳۷)

۴۷ (۲۲۵) — مَنْ أَخَذَ چاچه واخستل أَمْوَالَ النَّاسِ مالونه د خلقو
يُرِيْدُ أَدَاءَهَا او حال دا دے چهٔ اراده ئے وه د هغے د ادا کولو (خپلو
مالکانو ته) أَدَّى اللّٰهُ عَنْهُ الله به ئے ادا کړی د هغه د طرفه
وَمَنْ أَخَذَ او چاچه واخستل (مالونه د خلقو) يُرِيْدُ إِتْلَافَهَا[1]
او حال دا دے چه اراده ئے وه د هغے د ضائع کولو أَتْلَفَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ
الله به ځے د هغه نه ضائع کړی.

بخاری (۳ : ۱۵۲)، مسند احمد (۲ : ۳۶۱)، (۴۱۷) مشکاة (۲۹۱۰)

۴۸ (۲۲۶) — مَنْ أَفْطَرَ يَوْمًا چاچه یوه ورځ روژه ماته کړه مِنْ رَمَضَانَ
د رمضان (د میاشتے) مِنْ غَيْرِ رُخْصَةٍ بغیر څه د عذر نه وَلَا
مَرَضٍ او بغیر د څه بیماری نه لَمْ يَقْضِ عَنْهُ نو قضا به ئے ادا نه کړی
د هغه نه صَوْمُ الدَّهْرِ[2] كُلِّهِ د ټول عمر روژے وَإِنْ صَامَهُ
اګر که دے دا (ټول عمر) روژے اونیسی.

بخاری تعلیقاً (۳ : ۴۱)، ابوداؤد (۲۳۹۶)، ترمذی (۷۲۳)، مشکاة (۲۰۱۳)

---

[1] أَتْلَفَهُ إِتْلَافًا، خرابول، ضائع کول، برباد ول. تَلِفَ (باب سمع) تَلَفًا: هلاکول.
[2] اَلدَّهْرُ، زمانه، اوږده موده. جمع ئے أَدْهُرٌ او دُهُوْرٌ ده.

امام ترمذی فرمائی: ما د امام بخاری نه دا خبره اوریدلې ده چه ما ته دا روایت د راوی ابو المطوس یزید بن المطوس څخه بل روایت معلوم نه دے ترمذی (۱: ۱۰۱)

امام بخاری داهم فرمائی: ما ته دا نه ده معلومه چه ده دا روایت د سیّدنا ابو هریرة رضی الله عنهٗ نه اوریدلے دے او که نه (الترغیب والترهیب ۲: ۱۰۸)

امام ابن حِبّان وائی: دے چه په کوم روایت کښی یواځے وی نو د هغه په دلیل کښی پیش کول جائز نه دی (المجروحین ۳: ۱۵۷)

۴۹ ⑫۲۷ — مَنْ فَطَّرَ چا چه روژه ماتے ور کړه صَائِمًا یو روژه دار ته اَوْ جَهَّزَ یائے د جهاد سامان ورکړو غَازِيًا یو غزا کونکی ته فَلَهٗ نو شته دے ده لره مِثْلُ اَجْرِهٖ په شان د اجر د هغه۔

شرح السنة (۶: ۳۷۷)، مصنف ابن ابی شیبة (۵: ۳۵۱)، السنن الکبریٰ (۴: ۲۴۰)

مشکاة (۱۹۹۲)

۵۰ ⑫۲۸ — مَنْ اَطَاعَنِیْ چا چه ځما فرمان برداری اوکړه فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ نو یقیناً د الله فرمان برداری ئے اوکړه وَمَنْ عَصَانِیْ او چا چه ځما نافرمانی اوکړه فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ نو یقیناً د الله نافرمانی ئے اوکړه وَمَنْ يُّطِعِ الْاَمِيْرَ[1] او څوک چه فرمان برداری اوکړی د امیر (د جهاد) فَقَدْ اَطَاعَنِیْ نو یقیناً ځما فرمان برداری ئے اوکړه وَمَنْ يَّعْصِ الْاَمِيْرَ او څوک چه نافرمانی اوکړی د اَمیر (د جهاد) فَقَدْ عَصَانِیْ نو یقیناً ځما نافرمانی ئے اوکړه۔

بخاری (۹: ۷۷)، مسلم (۱۸۳۵)، نسائی (۴۱۹۳)، (۵۵۱۰) مشکات (۳۶۶۱)

---

[1] اَلْاَمِيْرُ: مشر، د جهاد کمانډر، امیر الجهاد، بحری کمانډر. جمع ئے اُمَرَاءُ ده۔

۵۱ (۲۲۹) ـــ مَنْ اَخَذَ چاچه واخستله (یعنی قبضه ئے کړه) مِنَ الْاَرْضِ شَيْئًا
څه لږ غوندې مزکه بِغَيْرِ حَقِّهٖ بغیر دده د څه حق نه خُسِفَ[1] بِهٖ
راخلاکیګی به دے د وجے يَوْمَ الْقِيٰمَةِ د قیامت په ورځ اِلٰى سَبْعِ
اَرَضِيْنَ[2] تر اوؤ مزکو پورے.

بخاری ۴: ۱۳۰، مسلم (۱۶۱۰)، مشکوٰة (۲۹۳۸)

۵۲ (۲۳۰) ـــ مَنْ رَاٰنِىْ چاچه زۀ اولیدلم فِى الْمَنَامِ[3] په خوب کښې فَقَدْ رَاٰنِىْ
نو یقیناً هغه ځه اولیدلم فَاِنَّ الشَّيْطَانَ ځکه چه یقیناً شیطان لَا يَتَمَثَّلُ[4]
نۀ شی متمثّل کیدے فِىْ صُوْرَتِىْ څما په شکل کښې.

بخاری ۱: ۳۸، ۸: ۵۴، ۹: ۴۲، ۴۳، مسلم (۲۲۶۶)، مشکوٰة (۴۶۰۹)

۵۳ (۲۳۱) ـــ مَنِ ادَّعٰى چاچه دعوی اوکړه مَا لَيْسَ لَهٗ په هغه څیز چه دده
نۀ وی فَلَيْسَ مِنَّا نو زمونږ (د فرمان بردارو نه) نۀ دے وَلْيَتَبَوَّاْ
او دے د ځان اوګرزی مَقْعَدَهٗ خپله ټهکانه مِنَ النَّارِ د اور نه.

مسلم (۱۱۲)، ابوعوانه (۱: ۲۴) ابن ماجه (۲۳۱۹)، مشکوٰة (۳۶۶۴)

۵۴ (۲۳۲) ـــ مَنْ صَامَ رَمَضَانَ چاچه د رمضان روژه اونیوله اِيْمَانًا د ایمان
(مضبوطولو) د پاره وَاحْتِسَابًا او د ثواب د پاره غُفِرَ لَهٗ هغه ته به اوبخلے
شی مَا تَقَدَّمَ هغه چه وړاندې شوی وی مِنْ ذَنْبِهٖ دده د ګناه نه

---

[1] خُسِفَ (فعل ماضی) خَسَفَ (باب ضرب) خَسْفًا فِى الْاَرْضِ: په مزکه کښې غرقیدل. خَسَفَ الْقَمَرُ: سپوږمۍ بے نوره شوه، تندرا ونیوه.

[2] اَرَضِيْنَ: د اَرْضٌ جمع سالم ده، مزکه. د جمع په حالت کښې د "ر" فتحه وی. اَرَضَاتٌ اُرُوْضٌ او اَرَاضِىْ ئے هم جمع راځی.

[3] مَنَامٌ، خوب، د اُوده کیدو ځائے. جمع ئے مَنَامَاتٌ ده. نَامَ يَنَامُ نَوْمًا: اوده کیدل.

[4] تَمَثَّلَ، مُشابه کیدل، هم شکل کیدل. مَثَلَ (باب نصر) مُثُوْلًا: په شان کیدل.

وَمَنْ قَامَ رَمَضَانَ اوچاچه د شپې عبادت اوکړو په رمضان کښې إِيمَانًا
د ايمان (مضبوطوالي) د پاره وَاحْتِسَابًا او د ثواب د پاره غُفِرَلَهُ د ده ته به
او بخلی شی مَا تَقَدَّمَ هغه چه وړاندې تير شوی وی مِنْ ذَنْبِهِ
د ده د ګناهانو نه وَمَنْ قَامَ اوچاچه عبادت اوکړو لَيْلَةَ الْقَدْرِ په
ليلة القدر کښې. إِيمَانًا د ايمان (مضبوطوالي) د پاره وَاحْتِسَابًا او د ثواب
د پاره غُفِرَلَهُ د ده ته به او بخلی شی مَا تَقَدَّمَ هغه چه وړاندې تير
شوی وی مِنْ ذَنْبِهِ د ده د ګناهانو نه۔

بخاری ۱: ۱۶، ۳۳،۳، مسلم (۷۵۹)، مشکاة (۱۹۵۸)۔

۵۵ (۲۳۳) — مَنْ أَكَلَ چاچه (کچا) اوخوړله مِنْ هٰذِهِ الشَّجَرِ الْمُنْتِنَةِ[٢]
دا بدبوداره بوټی (چه پیاز دی) فَلَا يَقْرَبَنَّ نو هغه د چرې هم نزدې
نه شی مَسْجِدَنَا جمونږ جماعت ته فَإِنَّ الْمَلٰئِكَةَ تَتَأَذّٰى
ځکه چه یقینا ملائکې ته تکلیف ورسی مِمَّا د هغې څیز نه يَتَأَذّٰى[١]
مِنْهُ الْإِنْسُ[٣] چه د هغې نه انسانانو ته تکليف ورسی۔

بخاری ۱: ۲۱۶، مسلم (۵۶۴)، مشکاة (۷۰۲)

۵۶ (۲۳۴) — مَنْ جُعِلَ څوک چه مقرر کړې شو قَاضِيًا فيصله کونکې بَيْنَ
النَّاسِ د خلقو ترمينځ فَقَدْ ذُبِحَ نو يقينا هغه حلال کړې شو

---

۱ قَامَ: (باب نصر) قَوْمًا وقِيَامًا، او دریدل۔ دلته ترې نفل مونځ کول مراد دی
۲ الْمُنْتِنَةِ: (اسم فاعل) نَتَنَ (باب ضرب، سمع) نَتْنًا، نَتُنَ (باب کرم) نَتَانَةً وَأَنْتَنَ،
بدبويه کيدل۔
۳ الْإِنْسُ: بنی ادم۔ أَنِسَ، أَنَسَ، أَنُسَ (باب سمع، کرم، ضرب) أَنَسًا، بِهِ، إِلَيْهِ: چاسره
مانوسه کيدل، محبت کول۔

بِغَيْرِ سِكِّيْنٍ[1] بغير د چړې نه. ابوداؤد (٣٥٧٢) ترمذی (١٣٢٥) مشكاة (٣٧٣٣)

٥٧ (٢٣٥) ــــ مَنْ حَلَفَ[2] چاچه قسم اوكړو بِغَيْرِ اللّٰهِ د الله نه سِوا د بل
چا فَقَدْ اَشْرَكَ نو يقيناً هغه شرك اوكړو.

ترمذی (١٥٣٥)، مسند احمد ٢: ٦٧، ٨٧، ١٢٥، مشكاة (٣٤١٩).

٥٨ (٢٣٦) ــــ مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ څوك چه ايمان لرى بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ په الله
اوپه ورځ د وستنئ باندې فَلْيُكْرِمْ[3] ضَيْفَهُ نو هغه دِ خپل ميلمه عزت اوكړي
وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ اوڅوك چه ايمان لرى بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ په الله
اوپه ورځ د وستنئ باندې فَلَا يُؤْذِ[4] نو هغه دِ تكليف نه وركوى جَارَهُ
خپل گاونډى له وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ اوڅوك چه ايمان لرى بِاللّٰهِ
وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ په الله اوپه ورځ د وستنئ باندې فَلْيَقُلْ خَيْرًا
نو خامخا دِ خير خبره دِ كوى اَوْلِيَصْمُتْ يا خامخا خاموش دِ وى.

بخاری ٨: ١٣، ٣٩، ١٢٥، مسلم (٤٧) مشكاة (٤٢٤٣).

٥٩ (٢٣٧) ــــ مَنْ صَلَّى الْعِشَاءَ چاچه د ماسختن مونځ اوكړو فِيْ جَمَاعَةٍ
د جمع سره فَكَاَنَّمَا نو گوياكه ده نفل اوكړل نِصْفَ اللَّيْلِ تر نيمے شپے
وَمَنْ صَلَّى الصُّبْحَ اوچاچه (ورسره) د سحر مونځ (هم) اوكړو فِيْ جَمَاعَةٍ
د جمع سره فَكَاَنَّمَا صَلَّى اللَّيْلَ كُلَّهُ نو گوياكه ده ټوله شپه (نفل) مونځ اوكړو

مسلم (٦٥٦)، ابوعوانه ٢: ٤، مشكاة (٦٣٠).

---

١ سِكِّيْنٌ، چاړه جمع ئے سَكَاكِيْنُ ده
٢ حَلَفَ: (باب ضرب) حَلْفًا وحِلْفًا وحَلِفًا بِاللّٰهِ: قسم كول، اَحْلَفَهٗ: يو چاله قسم وركول.
٣ فَلْيُكْرِمْ: اَكْرَمَهٗ اِكْرَامًا: تعظيم كول، عزت كول.
٤ فَلَا يُؤْذِ: اٰذٰى اِيْذَاءً: تكليف وركول، تنگول.

۶۰ (۲۳۸) — مَنْ بَطَّأَ بِهٖ هغه څوک چه هغه روستو کړو عَمَلُهٗ خپل عمل (جنت ته د تللو نه) لَمْ يُسْرِعْ بِهٖ هغه چرته نه شي وړاندې کولے (جنت ته) نَسَبُهٗ د هغه نسب.

مسلم (۲۶۹۹)، ابوداؤد (۳۶۴۳)، ترمذی (۲۹۴۵)، مشکاة (۲۰۴)۔

۶۱ (۲۳۹) — مَنْ حَجَّ چا چه حج اوکړو لِلّٰهِ د الله تعالیٰ د (رضامنتیا د) پاره فَلَمْ يَرْفُثْ نو څه کنده خبره ئے اونه کړه وَلَمْ يَفْسُقْ او نه ئے څه د ګناه کار اوکړو (د حج په دوران کښې) رَجَعَ هغه به واپس راځي كَيَوْمٍ په شان د (پاکې والی د هغه) ورځ وَلَدَتْهُ چه ورته زیږولے وُو اُمُّهٗ خپلې مور.

بخاری ۲: ۱۶۴، ۳: ۱۴، مسلم (۱۳۵۰)، مشکاة (۲۵۰۷)۔

۶۰ (۲۴۰) — مَنْ سَاَلَ اللّٰهَ الشَّهَادَةَ چا چه د الله نه شهادت اوغوښتلو بِصِدْقٍ په اخلاص (یا: د زړه په صدق سره) بَلَّغَهُ اللّٰهُ الله به هغه اورسوي مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ د شهیدانو درجو (او مرتبو) ته وَاِنْ مَاتَ اګر که دے مړ شي عَلٰى فِرَاشِهٖ په خپل کټ پوزې کښې۔

مسلم (۱۹۰۹)، ترمذی (۱۶۵۳)، نسائی (۳۱۶۲)، مشکاة (۳۸۰۸)۔

---

۱ بَطَّأَ: د باب تفعیل نه فعل ماضي دے د (عَجَّلَ) تلوار کولو ضد او مقابل دے: روستو کول، مؤخر کول. بَطُؤَ (باب کرم) بُطَاءً وَبُطُوْءًا۔ سست سړی ته بَطِیٌ وئیلے شي۔

۲ لَمْ يُسْرِعْ: تیزي کول، تلوار کول۔ فِي الْمَشْيِ: چاق چاق تلل، زر زر تلل، په تلوار تلل

۳ فَلَمْ يَرْفُثْ، رَفَثَ (باب نصر، ضرب) رَفْثًا فِي الْكَلَامِ: کنده خبره کول، بکواس کول، د جماع خبرے کول۔ په قرآن مجید کښې راځي، فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ: (سورة البقرة ۲: ۱۹۷) یعني د حج په دوران کښې دې فضول خبرے او ګناه خبرے نه کوي۔

۴ وَلَمْ يَفْسُقْ: (باب نصر، ضرب، کرم) فِسْقًا وَفُسُوْقًا: نافرماني کول، بدکارې او غلط کار کول، د نیغې لارے نه اوښیدل. فَاسِقٌ د دے نه وتلے دے چه جمع ئے فَسَقَةٌ او فُسَّاقٌ ده۔

۵ ولدته:- وَلَدَ (باب ضرب) وِلَادَةً: پیدا کیدل، زیږیدل

۶ فِرَاشٌ:- (بکسر الفاء) بستره، کټ، پوزے جمع ئے اَفْرِشَةٌ او فُرُشٌ ده۔ فَرَشَ (باب نصر و ضرب) فَرْشًا: د غوړیدلو ځیز، تو لانی

۶۱ (۲۳۱) — مَنِ احْتَبَسَ فَرَسًا چا چې آس اوساتلو فِي سَبِيلِ اللهِ د الله
په لار کښې (د جهاد کولو د پاره) إِيمَانًا بِاللهِ په داسې حال کښې چې په الله ئې
ايمان لرلو وَتَصْدِيقًا بِوَعْدِهِ او رښتيا ئې کنړله د هغه وعده فَإِنَّ شِبَعَهُ
نو يقيناً وي به خوراک د هغه (آس) وَرِيَّهُ او څښاک د هغه (آس) وَرَوْثَهُ
او خشتره د هغه (آس) وَبَوْلَهُ او بول د هغه (آس) فِي مِيزَانِهِ د هغه په
تله کښې يَوْمَ الْقِيٰمَةِ د قيامت په ورځ.

بخاري ۲۸۵۳، نسائي (۳۵۸۲)، مشكاة (۳۸۶۸).

۶۲ (۲۳۲) — مَنْ كَانَ لَهُ شَعْرٌ د چا چې ويښته وي فَلْيُكْرِمْهُ نو هغه دې دا
خامخا صفا ساتي.

(ابوداؤد (۴۱۶۳)، مشكاة (۴۴۵۰)

---

۱ احْتَبَسَ :- ساتل، ايسارول. لازمي او متعدي دواړو دپاره يوشان استعماليږي. حَبَسَ (باب ضرب)
حَبْسًا : ساتل، ايسارول، قيدکول.
۲ شِبَعٌ : (بكسر الشين) : د ومره خوراک چې په هغې خيټه مړه شي. شَبِعَ (باب سمع) شَبَعًا :
مړيدل، آسوده کيدل، حالت خه کيدل.
۳ رَوِيَ : (باب سمع) رِيًّا. مِنَ الْمَاءِ، په اوبو مړيدل.
۴ رَوْثٌ (بفتح الراء) د آسونو، قچرو. او خرو و لوئ بول. جمع ئې اَرْوَاثٌ ده. رَاثَ (باب نصر) رَوْثًا
الْفَرَسُ : آس خشتره اوکړه.
۵ بَوْلٌ : واړه بول. بَالَ (باب نصر) بَوْلًا وَمَبَالًا : واړه بول کول.

# نوعِ آخرمنه

۱ (۲۴۳) — إِذَا سَرَّتْكَ[1] کله چه تا خوشحاله کړی حَسَنَتُكَ[2] ستا نیکی کول وَسَاءَتْكَ[3] او (کله) چه تا خفه کړی سَيِّئَتُكَ[4] ستا بد (کول) فَأَنْتَ مُؤْمِنٌ نو ته مؤمن یې

مسند احمد (۵: ۲۵۲)، المستدرک (۱: ۱۴، ۲: ۱۳) مشکاة (۴۵)

۲ (۲۴۴) — إِذَا وُسِّدَ[5] الْأَمْرُ کله چه اوسپارلے شی کار إِلَىٰ غَيْرِ أَهْلِهِ نا اهلو ته فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ نو انتظار کوه د قیامت۔

بخاری ۱: ۲۳، مشکات (۵۴۳۹)۔

۳ (۲۴۵) — إِذَا كُنْتُمْ ثَلَاثَةً کله چه تاسو درے تنه یئ فَلَا يَتَنَاجَى[6] لو پټے پټے خبرے دِ نه کوی اِثْنَانِ دوه کسان دُوْنَ[7] الْآخَرِ د دے (دریم) نه بغیر۔

---

[1] سَرَّ (باب نصر) سُرُورًا وَمَسَرَّةً: خوشحاله کول، خوش حاله ول۔
[2] حَسَنَةٌ: (بفتحتین) نیکی۔ جمع یې حَسَنَاتٌ ده۔
[3] سَاءَ: (باب نصر) سُوْءًا: خرابیدل، قبیحه کیدل۔ سَاءَتْ سِيْرَتُهُ: دهغه عادت خراب دے۔
[4] سَيِّئَةٌ: گناه، بدی، جرم۔ جمع یې سَيِّئَاتٌ ده۔
[5] وُسِّدَ تَوْسِيْدًا: اَلْأَمْرُ: څه کار چاته سپارل۔ څوک ذمه دار کول۔
[6] تَنَاجَى الْقَوْمُ: پټے پټے خبرے کول۔ په قرآن مجید کښی دی چه فَلَا تَتَنَاجَوْا بِالْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ (سورة المجادله ۵۸: ۹) لو پټے مشورے مه کوئ دگناه او دظلم کولو۔
[7] دُوْنَ۔ د غَيْر په معنیٰ راځی مِنْ دُوْنِ اَنْ يَفْعَلَ: بغیر د څه کار کولو نه۔ دکم، لاندے، سپک او ذلیل په معنیٰ هم استعمالیږی۔

حَتّٰى تَخْتَلِطُوْا[1] تر دې پورې چه که ده شي تاسو بِالنَّاسِ په خلقو کښې مِنْ اَجَلِ اَنْ يُّحْزِنَهٗ[2] په دې وجه چه (د دوو کسانو پټې پټې خبرې کول) هغه (دريم) خفه کوي

بخاري ۸، ۸۰، مسلم (۲۱۸۴)، واللفظ له مشكاة (۴۹۶۵)۔

۴ (۲۴۶) ــــ اِذَا قَضَى[3] اللّٰهُ کله چه فيصله اوکړي الله تعالىٰ لِعَبْدٍ د يو بنده په حق کښې اَنْ يَّمُوْتَ بِاَرْضٍ چه هغه مړ کړي په يو ملک کښې جَعَلَ لَهٗ پيدا کړي (الله) ده ته (سړي) اِلَيْهَا حَاجَةً په هغه (ملک) کښې څه ضرورت۔

ترمذي (۲۱۴۶)، (۲۱۴۷)، مسند احمد (۵، ۲۲۷)، مشكاة (۱۱۰)۔

۵ (۲۴۷) ــــ اِذَا طَبَخْتَ[4] کله چه ته پخه کړې مَرَقَةً[5] شوروا فَاَكْثِرْ مَاءَهَا نو اوبه پکښې ډيرې کړه وَتَعَاهَدْ جِيْرَانَكَ او خپلو گاونډيانو سره ښه سلوک کوه (او په حکم ئې ورله ورکوه)

مسلم (۲۶۲۵)، مشكاة (۱۹۳۷)۔

۶ (۲۴۸) ــــ اِذَا لَبِسْتُمْ کله چه اغوندئ تاسو (قميص، پرتوگ او څپلئ) وَاِذَا تَوَضَّأْتُمْ[6] او کله چه اودس کوئ تاسو فَابْدَءُوْا نو شروع کوئ

---

[1] اِخْتَلَطَ اِخْتِلَاطًا: يوځائې کيدل، گډ وډ کيدل خَلَطَ (باب ضرب) خَلْطًا وَخِلْطًا: يوځائې کول گډ وډ ول۔

[2] اَحْزَنَ الرَّجُلَ: خوږ خفا کول حَزِنَ (باب سمع) حُزْنًا لَهٗ، عَلَيْهِ: خفا کيدل۔ صفت ترې نه حَزِيْنٌ دې چه جمع ئې حُزَنَاءُ او حِزَانٌ ده۔

[3] قَضٰى (باب ضرب) قَضَاءً: فيصله کول۔

[4] طَبَخَ (باب فتح ونصر) طَبْخًا: پخول۔ مَطْبَخٌ: باورچي خانه۔ طَبَّاخٌ: باورچي۔

[5] مَرَقَةٌ: شوروا۔ مَرَقَ (باب نصر، ضرب) مَرْقًا اَلْقِدْرَ: شوروا زياته کول۔

[6] تَوَضَّأَ بِالْمَاءِ: چار اندام پريمنځل۔ وَضُؤَ (باب کرم) وَضُوْءً: پاکيدل۔

بِمَيَامِنِكُمْ[۱] د خپلو ښي طرفونو نه.

ابوداؤد (۴۱۴۱) ابن ماجه (۴۰۲)، مسند احمد ۲: ۳۵۴، مشكاة (۴۰۱).

۷ (۲۴۹) ـــ إِذَا تَوَضَّأْتَ کله چه ته اودس کوې فَخَلِّلْ[۲] لوخلال کوه بَيْنَ أَصَابِعِ[۳] يَدَيْكَ د خپلو لاسو لو ګوتو تر مینځ وَرِجْلَيْكَ او د خپلو خپو (د ګوتو تر مینځ).

ترمذی (۳۸) مشكاة (۴۰۶)

۸ (۲۵۰) ـــ إِذَا وُضِعَ الطَّعَامُ کله چه خوراک کیخودې شي فَاخْلَعُوا[۴] نِعَالَكُمْ[۵] لو څپل پیزارونه اوباسئ فَإِنَّهُ أَرْوَحُ ځکه چه دا ځه ارام ورکوونکي دی لِأَقْدَامِكُمْ ستاسو قدمونو له.

الدارمی ۲: ۱۴۸، المعجم الاوسط (۳۲۲۶)، المستدرك ۱: ۲۴۰، مسند ابی یعلی ۷: ۲۰۰ (۴۱۸۸). مشكاة (۴۲۴۰).

امام مناوی وائي: دا حکم ارشادی (یعنی استحبابی) دے د دے دپاره چه خپو ته آرام اورسي. فیض القدیر ۱: ۴۵۲

د دے روایت سند ډیر سخت ضعیف او کمزورے دے ځکه چه موسی بن محمد ابن ابراهیم التیمی لوئے راوی پکښې موجود دے. د دے راوی په حقله امام بخاری فرمائي: احادیث ئې مناکیر دی (التاریخ الکبیر ۷: ۲۹۵) (التاریخ الصغیر ۲: ۱۳۳)
امام نسائي وائي: منکر الحدیث دے (الضعفاء و المتروکین ص ۲۲۵ ت ۵۸۴)
امام دارقطنی وائي: متروك الحدیث دے (میزان الاعتدال ۴: ۲۱۸)

---

۱ مَيَامِنُ: د مَيْمَنَةٌ جمع دے: ښي طرف.
۲ خَلِّلْ: (فعل امر) خَلَّلَ الْأَسْنَانَ: د غاښو لو خلال کول. خَلَّ (باب نصر) خَلًّا: سورے کول
۳ أَصَابِعُ: د إِصْبَعٌ جمع ده، ګوتے ته وئیلے شي.
۴ خَلَعَ (باب فتح) خَلْعًا، الشَّيْءَ: څه څيز اوباسل. نَعْلَيْهِ: پیزار او پیڼړے اوباسل. په قرآن مجید کښې دي چه فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ (سورة طه ۲: ۱۲) ته خپلے پیڼړے اوباسه.
۵ نِعَالٌ د نَعْلٌ جمع دے: پیزار، څپلئ، چپل، پیڼړه. تَنَعَّلَ، إِنْتَعَلَ. نَعِلَ (باب سمع) نَعَلًا.

امام حاکم دا روایت دلقل کولو نه روستو لیکی : دا روایت سند صحیح دے خو حافظ ذهبی د امام حاکم قول رد کوی او وائی : أَحْسِبُهُ مَوْضُوْعًا ، وَإِسْنَادُهُ مُظْلِمٌ وموسی ترکه الدارقطنی (تلخیص المستدرک ۱ : ۲۴۰) یعنی زه دا روایت موضوعی کنړم د دے سند د تیرونه ډک دے او موسیٰ د دارقطنی په نزد متروک دے۔

د ابو یعلی په سند کښی داؤد بن زبرقان لوئے راوی دے د هغه په حقله امام نسائی وائی : ثقه نه دے (الضعفاء و المتروکین ص ۹۹ ، ت ۱۸۹)

امام جوزجانی وائی : کذاب دے (احوال الرجال ص ۱۱۱ ، ت ۱۲۶) د امام ابو زرعه نه دد دے راوی په حقله تپوس اوکړے شو لوهغوی اووئیل - متروک الحدیث دے . بیا ترے تپوس اوکړے شو آیا مونکه دده روایتونه یاد کړو او دځان سره ئے اولیکو ؟ لوهغوی په نفی کښی جواب ورکړو (تاریخ بغداد ۸ : ۳۵۸ ، ۳۵۹)

۹ (۲۵۱) — إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ کله چه به تا کښی حیا نه وی فَاصْنَعْ لو بیا (خو) کوه مَا شِئْتَ چه څه د خوښه شی

بخاری ۴ : ۲۱۵ ، موطا امام مالک ۱ : ۱۵۸ ، مشکاة (۵۰۷۲)

۱۰ (۲۵۲) — إِذَا أَكَلَ أَحَدُكُمْ کله چه په تاسو کښی یو تن خوراک کوی فَلْيَأْكُلْ بِيَمِيْنِهٖ[1] لو هغه د خامخا په ښی لاس باندے خوراک کوی وَإِذَا شَرِبَ او چه کله ښباک کوی فَلْيَشْرَبْ بِيَمِيْنِهٖ لو خامخا دِ په خپل ښی لاس ښباک کوی۔

مسلم (۲۰۲۰) ، ابوداؤد (۳۷۷۶) ، مشکاة (۴۱۶۲)-

۱۱ (۲۵۳) — إِذَا انْتَعَلَ أَحَدُكُمْ کله چه په تاسو کښی یو تن پیزار اچوی فَلْيَبْدَأْ بِالْيُمْنٰى[2] لو خامخا په ښی خپه د شروع اوکړی وَإِذَا

---

[1] یَمِیْنٌ : ښے لاس ، طرف - جمع ئے أَیْمُنٌ ، أَیْمَانٌ ، أَیَامِنٌ او أَیَامِیْنُ راځی -
[2] اَلْیُمْنٰی :- ښے لاس ، طرف ، خپه -

نَزَعَ اوکله چه (پېزار) اوباسي فَلْيَبْدَأْ بِالشِّمَالِ نو خامخا د کسے
غاړے نه دِ شروع کوي لِتَكُنِ الْيُمْنٰى د دې پاره چه دې ښئ خپه اَوَّلُهَا
تُنْعَلُ چه اول ورته پېزار اچولے شي وَآخِرُهُمَا تُنْزَعُ او روستو ترے پېزار اوباسلے شي

بخاري ۷: ۱۹۹۱، مسلم (۲۰۹۷)، مشكاة (۴۴۱۰)

۱۲ (۲۵۴) — إِذَا أَطَالَ أَحَدُكُمُ الْغَيْبَةَ چه کله يو تن په تاسو کښې دخپل
اَهل نه اوګده غير حاضري اوکړي، فَلَا يَطْرُقْ أَهْلَهُ لَيْلًا نو هغه دِ خپل
اَهل ته د شپے نه راځي.

بخاري ۷: ۵۰، مسند احمد ۳: ۳۹۶، مشكاة (۳۹۰۳)

۱۳ (۲۵۵) — إِذَا دَخَلْتُمْ عَلَى الْمَرِيضِ کله چه تاسو مريض له ورشئ فَنَفِّسُوا
لَهُ نو د هغه غم غلط کړئ فِي أَجَلِهِ د هغه د مرګ په باره کښې فَإِنَّ
ذٰلِكَ ځکه چه يقيناً دا کار، لَا يَرُدُّ شَيْئًا څه څيز (د تقدير) نه رد کوي
وَيُطَيِّبُ بِنَفْسِهِ او د هغه زړه پرے خوش حاليږي.

ترمذي (۲۰۸۷)، ابن ماجه (۱۴۳۸)، مشكاة (۱۵۷۲)

دا دے روايت سند ډير ضعيف دے ځکه چه مرکزي راوي ئے موسىٰ بن
محمد بن ابراهيم التيمي دے په حديث (۲۵۰) لاندے د هغه په باره کښې
کلام نقل کړے شوے دے امام ابن ابي حاتم دا دے روايت په حقله ليکي، ما دا دے

---

[1] نَزَعَ، (باب ضرب) نَزْعًا، اوباسل.
[2] اَلشِّمَالُ، کس لاس، خپه، طرف. جمع ئے اَشْمُلٌ او شُمُلٌ راځي.
[3] غَابَ (باب ضرب) غَيْبًا وغَيْبَةً. عَنْهُ، غائبيدل، جدا کيدل، غير حاضر کيدل.
[4] طَرَقَ، (باب نصر) طَرْقًا وطُرُوقًا، اَلْقَوْمُ، د شپے تلل. طَارِقٌ، د شپے راتلونکی ته وائي. جمع ئے
طُرَّاقٌ دَه.
[5] نَفَّسَ، تَنْفِيسًا، عَنْهُ، غم غلطول، لرے کول.
[6] اَجَلٌ (بفتحتين) زمانه، موده، وخت، مرګ. جمع ئے آجَالٌ دَه.
[7] طَابَ، (باب ضرب) طِيبًا، خه کيدل، عمده او لذيذ کيدل. طَابَتِ النَّفْسُ، زړه خوش حاليدل.

روایت په باره کښې د خپل پلار نه نېوس اوکړو لوهغوئ راته اووئیل، دا روایت منکر دے بلکه یاګه موضوعي دے۔ او موسی ډیر سخت ضعیف دے۔ او ده پلار محمد بن ابراهیم التیمی نه د جابر رضی الله عنه احادیث اوریدلی دی او نه دابوسعید خدری نه۔ هسے هغوئ ته نسبتونه کوی۔

(علل الحدیث ۲۲۱۴)

۱۴ (۲۵۶) ــــ اِذَا دَخَلَ اَحَدُکُمُ کله چه په تاسو کښې یو تن داخل شی اَلْمَسْجِدَ جمات ته فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ نو حا دوه رکعته (مونځ) دِ اوکړی۔ قَبْلَ اَنْ يَجْلِسَ د کیناستلو نه مخکښ۔

بخاری ۱: ۱۲۱، مسلم (۲۱۴)، مشکاة (۲۰۴)



# ذِكْرُ بَعْضِ الْمُغَيَّبَاتِ[1]

## اَلَّتِیْ اَخْبَرَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمُ بِهَا وَظَهَرَتْ بَعْدَ وَفَاتِهٖ

د بعضې غیبو لو ذکر چه نبي صلی الله علیه وسلم په حپل ژوند کښې د هغې اطلاع ورکړې وه او هغه د هغوی د وفات نه روستو ښکاره شو.

(۲۵۲) قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبي صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی، وَهُوَ سَيِّدُ[2] الصَّادِقِيْنَ او حال دا دے چه هغه د رشتینو سردار دے. لَا يَزَالُ مِنْ اُمَّتِیْ همیشه به وی ځما په اُمت کښې اُمَّةٌ یوه ډله قَائِمَةٌ بِاَمْرِ[3] اللّٰهِ قائمه به وی د الله تعالیٰ په دین باندې لَا يَضُرُّهُمْ[4] مَنْ دوی له به نقصان نهٔ ورکوی هغه څوک خَذَلَهُمْ[5] چه د دوی امداد پرېږدی، وَلَا مَنْ او نه هغه څوک (دوی له نقصان ورکولے شی) خَالَفَهُمْ چه د دوئ مخالف وی. حَتّٰی يَأْتِیَ تر دے پورې چه را به شی اَمْرُ[6] اللّٰهِ د الله حکم (چه مرګ او قیامت دے)

---

[1] اَلْمُغَيَّبَاتِ: د مُغَيَّبَةٌ جمع دے: پیشین ګوئی، د غیب خبره.

[2] سَيِّدٌ: سردار، مشر، عزت مند. جمع ئے اَسْيَادٌ، سَادَةٌ او سیائد راځی. په دیکښې یو لغت د سیّد هم دے، سَادَ (باب نصر) سِيَادَةٌ، قَوْمَهٗ، د قوم مشر کیدل.

[3] اَمْرٌ: د دین معامله. جمع ئے اُمُوْرٌ ده.

[4] ضَرَّ (باب نصر) ضُرًّا: نقصان ورکول.

[5] خَذَلَ (باب نصر) خَذْلًا وخُذْلَانًا: امداد پرېښودل، امداد نهٔ کول.

[6] اَمْرٌ: حکم، مرګ، قیامت.

وَهُمْ عَلٰى ذٰلِكَ او وی به دوئ په دے (اخپل کار) باندِ کلکِ

بخاری ۴: ۲۵۲ ، ۹: ۱۶۷ مشکاة (۶۲۷۶).

۲ (۲۵۸) — يَكُوْنُ فِيْ آخِرِ الزَّمَانِ وی به په آخره زمانه کښې دَجَّالُوْنَ[۱]
ډیر فریب ژن كَذَّابُوْنَ ډیر دروغژن يَأْتُوْنَكُمْ مِنَ الْاَحَادِيْثِ
راوړی به تاسو ته داسے احادیث بِمَا لَمْ تَسْمَعُوْا اَنْتُمْ چه نه به تاسو
اوریدلی وی وَلَا آبَاؤُكُمْ او نه به ستاسو مشرانو اوریدلی وی، فَاِيَّاكُمْ
وَاِيَّاهُمْ نو ځان د هغوی نه ډیر ډیرے نه ساتئ لَا يُضِلُّوْنَكُمْ[۲]
چرے تاسو بے لارے نه کړی وَلَا يَفْتِنُوْنَكُمْ[۳] او چرے تاسو
ازمیښت کښې وا نه چوی.

مسلم (۷) مشکل الآثار ۴: ۲۰۴، مشکاة (۱۵۴)

---

۱ دَجَّالُوْنَ: د دَجَّال جمع ده. بله جمع ئے دَجَاجِلَةٌ ده: ډیر فریب ژن، دهوکه باز او دروغژن ته د ښیلے شی. دَجَلَ (باب نصر) دَجْلًا فریب کول، دروغ ونیل، دهوکه کول.

۲ لَا يُضِلُّوْنَكُمْ: اَضَلَّ، اِضْلَالًا: بے لارے کول، ګمراه کول. په قرآن مجید کښې دی چه: وَمَا يُضِلُّ بِهٖ اِلَّا الْفَاسِقِيْنَ ط (سورة البقرة ۲: ۲۶) یعنی: نه بے لارے کیګی په دے (قرآن) مګر کافران.

۳ وَلَا يَفْتِنُوْنَكُمْ: فَتَنَ (باب ضرب) فتنةً، فُتُوْنًا: خلک بے لارے کول، ازمیښت کښې اچول، فتنه کښې اچول.

۳ (۲۵۹) — خَيْرُ النَّاسِ په خلقو کښې غوره قَرْنِي[1] زما زمانه ده
ثُمَّ الَّذِيْنَ بیا هغه خلق (غوره دي) يَلُوْنَهُمْ[2] چه ددې ته نزدې
دي ثُمَّ الَّذِيْنَ بیا هغه خلق (غوره دي) يَلُوْنَهُمْ چه هغوی ته
نزدې دي ثُمَّ يَجِيْئُ قَوْمٌ بیا به یو داسې قوم راشي تَسْبِقُ[3] چه
وړاندې کیږي به شَهَادَةُ اَحَدِهِمْ ګواهي دیوتن د هغوي
يَمِيْنَهٗ[4] د هغه د قسم نه وَيَمِيْنُهٗ او قسم د هغه به (وړاندې لیګي)
شَهَادَتَهٗ د هغه د ګواهۍ نه.

بخاري ۳: ۲۲۴، ۸: ۱۱۳: مسلم (۲۵۳۳) ترمذي (۳۸۵۹) مشکاة (۳۷۶۷)
امام ابن جوزي وائي: مطلب دا دې چه دې روستني خلقو کښې به
د الله تعالی نه ډیره نه وي. او دوئ به ګواهي او قسم ډیر سپک او
کمزوري څیزونه کنړي.
قال ابن الجوزي. المراد انهم لايتورعون ويستهينون بأمر الشهادة واليمين
(فتح الباري ۵: ۲۶۱)

۴ (۲۶۰) — لَيَأْتِيَنَّ خامخا راځي به عَلَى النَّاسِ په خلقو باندې زَمَانٌ
یوه (داسې) زمانه لَا يَبْقَى اَحَدٌ چه نه به پاتې کیګي (په هغې کښې)

---

[1] قَرْنٌ:- بفتح القاف. صدی، سل کلونه، یو وخت او زمانه. جمع ئې قُرُوْنٌ
ده. قَرَنَ (باب نصر) قَرْنًا.
[2] وَلِيَ (باب ضرب، حسِب) وَلْيًا: پیوستیدل، متصل کیدل، نزدې کیدل. عرب وائي:
جَلَسْتُ مِمَّا يَلِيْهِ:- څه هغه ته نزدې کینا ستم.
[3] تَسْبِقُ:- سَبَقَ (باب نصر، ضرب) سَبْقًا. سَبَقَ اِلَيْهِ: هغه ته وړاندې شه، سَبَقَ عَلَيْهِ،
په هغه زور آور شه.
[4] يَمِيْنَهٗ، يَمِيْنٌ: قسم. جمع ئې اَيْمُنٌ او اَيْمَانٌ ده. دا لفظ مؤنث استعمالیګي.

هیڅوک اِلّاَ اٰکَلَ الرِّبٰوا[1] مګر سود به خوري فَاِنْ لَّمْ یَاْکُلْهُ
که چرې څوک دانه خوري اَصَابَهٗ رسیږي به هغه ته مِنْ
بُخَارِهٖ[2] څه بعضې بهراس د دې.

ابوداؤد (۳۳۳۱)، نسائي (۴۴۵۵)، ابن ماجه (۲۲۷۸) مشکاة (۲۸۱۸).

۵ (۲٦۱) —— اِنَّ الدِّیْنَ یقیناً دین اسلام بَدَأَ غَرِیْبًا ډېر نا اشنا شروع
شوی دی وَسَیَعُوْدُ او دې به ډېر ژر شي کَمَا بَدَأَ هغه شان
(نا اشنا) لکه چه شروع شوی دی. فَطُوْبٰی لِلْغُرَبَاءِ نو خوش حالي
دی د نااشنا خلقو دپاره وَهُمُ الَّذِیْنَ او دا (نا اشنا خلق) هغه
دي یُصْلِحُوْنَ چه اصلاح کوي مَا اَفْسَدَ النَّاسُ د هغې چه
وران کړی وي خلقو مِنْ بَعْدِيْ ځما نه روستو مِنْ سُنَّتِيْ
ځما د طریقو نه.

مسلم (۲۳۲)، ترمذي (۲٦۳۰)، ابن ماجه (۳۹۸۸)، مشکاة (۱۷۰)
سیدنا عبد الله بن مسعودؓ به خپلو ملګروته فرمائیل: کیف انتم اذا لبستم فتنة یهرم فیها الکبیر ویربو فیها الصغیر ویتخذها الناس سنة فاذا غیرت. قالوا: غیرت السنة. قالوا: ومتی ذلك یا ابا عبد الرحمن. قال: اذا کثرت قراءکم وقلت فقهاءکم وکثرت امراءکم وقلت امناءکم والتمست الدنیا بعمل الاخرة (سنن الدارمي ۱: ۷۵ مقدمه باب ۲۲ حدیث ۱۸۵)

٦ (۲٦۲) —— یَحْمِلُ حفاظت به کوي هٰذَا الْعِلْمَ د دې علم (د قرآن[3]

---

ل اَلرِّبٰوا: سود. رِبَا (باب نصر) رِبَاءً. رَبَا الْمَالُ: مال ډېر شو، زیات شو.
ل بُخَارِهٖ، بُخَارٌ: بضم الباء: بهراس، تاؤ، دوړه، اثر. جمع ئې اَبْخِرَةٌ ده. بَخَرَ (باب فتح) بَخْرًا: بهراس او یا سل.

اوسنت) **مِنْ كُلِّ خَلَفٍ**[1] په هره زمانه کښې **عُدُولُهُ**[2] ثقه (خلق) دغه علم به اخلي — **يَنْفُوْنَ عَنْهُ**[3] لرې کوي به هغوی د دې (دين) نه **تَحْرِيْفَ الْغَالِيْنَ**[4][5] او لون بدلون د تجاوز کونکو **وَانْتِحَالَ الْمُبْطِلِيْنَ**[6][7] او دروغ د باطل پرستو **وَتَأْوِيْلَ الْجَاهِلِيْنَ** او تاويل د جاهلانو

السنن الکبری ۱۰: ۲۰۹، مناقب الشافعی ۱: ۲، دلائل النبوة ۱: ۴۴ کلهم للبيهقي مصابيح السنة (۱۹۰!) مشکاة (۲۴۸)

دد ې روايت دار ومدار په معان بن رفاعة السلامی باندې دې دهغه په حقله امام ابن حِبّان وائی: منکرحديثونه بيانوي. ډيرزيات مراسيل هم بيانوي او د مجهول راويانو نه احاديث نقل کوي. دده روايتونه دثقه راويانو د روايتونو نوعيت نه دي. هرکله چه په ده باندې دا حال غالب شو نو دې لائق شو چه دده د روايتونو نه د استدلال او نکړې شي. (المجروحين ۳: ۳۶)

حافظ ذهبی وائی: حديث والا خو دې څوکلک نه دې (ميزان الاعتدال ۴: ۱۳۴)

حافظ ذهبی دا روايت دابراهيم بن عبد الرحمن العذري په ترجمه کښې ليکلې دې او وائي چه: دا راوی قليل الرواية تابعي دې زما خيال نه دې چه دې به واهي وي (ميزان الاعتدال ۱: ۴۵)

---

[1] خَلَفَ (بالفتحتين) جانشين، قائم مقام، بدل، وارث، د روستنۍ زمانې خيز. خَلَفَ (اساب نصر) خَلَافَةً: خليفه کيدل، روستو راتلل، پيدا کيدل.

[2] عُدُوْلٌ: (بالضم) دَ عادِل جمع ده: عدل کونکي، ثقه، معتبر. عَدَلَ (باب ضرب) عَدْلاً وعَدَالَةً: انصاف کول. عَدَلَ الشَّهْرَ: غشي نيغول.

[3] نَفٰى (باب ضرب) نَفْيًا، نَفٰى عَنْهُ: لرې کول، جدا کول. نَفَاةٌ: دمکه شړل.

[4] حَرَّفَ تَحْرِيْفًا، حَرَّفَ الْقَوْلَ: سمه وينا کښې ادل بدل کول، مطلب غلطول، تغير کول. په قرآن مجيد کښې دي چه يحرفون الكلم عن مواضعه (سورة النساء ۴: ۴۶): اړ دي کلمات د ځپلو ځايونو نه.

[5] اَلْغَالِيْنَ، اسم فاعل دې. غَالٍ ئې واحد دې. غَلَا (باب نصر) غُلُوًّا: د حد نه تجاوز کول د حد نه تيريدل. د لته مطلب هغه خلق دي چه د قرآن او حديث غلط مطلبونه بيانوي، بدلون کوي

[6] اِنْتَحَلَ الْقَوْلَ: د بل د خبرې خپل ځان ته نسبت کول. دروغ وئيل.

[7] اَلْمُبْطِلِيْنَ، اسم فاعل دې د اَلْمُبْطِل جمع ده. اَبْطَلَ اِبْطَالاً: بې فائدې او لغو کار کول

علامه جمال الدين القاسمي وائي: د دے حديث كنز طرق دي او د هغې په سبب دے د حسن درجے ته رسيږي. لكه چه امام العلائي د دے تصريح كړے ده. (قواعد التحديث ٤٩)۔

٧ (٢٦٣) — وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهٖ زما دِ په هغه ذات قسم وي چه زما نفس د هغه په لاس كښي دے لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا چه نه به ختميگي دنيا حَتّٰى يَأْتِيَ عَلَى النَّاسِ تر دے چه رابشي په خلقو باندې يَوْمٌ يو داسے وخت لَا يَدْرِي الْقَاتِلُ چه قاتل ته به نه وي معلومه فِيمَ قَتَلَ چه هغه قتل ولے كړے دے وَلَا الْمَقْتُولُ او نه به مقتول ته علم وي فِيمَ قُتِلَ چه هغه ولے قتل كړے شوے دے فَقِيلَ نو او وئيلے شو كَيْفَ يَكُونُ ذٰلِكَ دا به لا څنګه زمانه وي؟ قَالَ هغه اوفرمائيل اَلْهَرْجُ د فتنے زمانه به وي اَلْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ قاتل او مقتول دواړه به په اور كښي وي.

مسلم (٢٩٠٨) مشكاة (٥٣٩٠)

٨ (٢٦٤) — يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ ډيره په تيزئ به تيريگي زمانه وَيُقْبَضُ الْعِلْمُ او علم به قبض كړے شي وَتَظْهَرُ الْفِتَنُ او فتنے به ښكاره شي

---

١ دَرٰى (باب ضرب) دِرَايَةً: علم حاصليدل، پوهيدل۔
٢ الهرج: فتنه او فساد، بد امني، قتل وغارت۔
٣ تَقَارُبٌ: نزدے كيدل. قَرُبَ (باب سمع، كرم) قُرْبًا۔
٤ تَيَقُّضٌ: (باب ضرب) قَبْضًا: اوچتول، لرے كول، قبضه كښي اخستل. تَيَقَّضَ الطَّائِرُ جَنَاحَهٗ: مرغۍ خپلے وزرے غونډے كړے۔

وَ يُلْقَى الشُّحُّ[2] اوشو مىتيا به پيدا کړے شي وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ اوبد امني

به ډيره شي قَالُوْا هغوى اوويئيل وَمَا الْهَرْجُ اوبد امني څۀ دۀ ؟

قَالَ : اَلْقَتْلُ ، رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل : قتل

بخارى ٨ : ١٧ ، مسلم (٢٦٧٢) ، مشكاة (٣٨٩)

٩ (٢٦٥) — وَالَّذِيْ څما د قسم دى په هغه ذات نَفْسِيْ بِيَدِهٖ چه څما نفس دهغه په لاس کښې دے لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا چه نه به ختميږي دنيا حَتّٰى يَمُرَّ الرَّجُلُ ترڅو چه پورے ورتيريږى به يو سړے عَلَى الْقَبْرِ ديو قبر په خوا کښې فَيَتَمَرَّغُ فِيْهِ[3] نو ارغړى به په هغې کښې وَيَقُوْلُ او وائى به يَالَيْتَنِيْ هائے هلاکت دے مالره كُنْتُ مَكَانَ صَاحِبِ هٰذَا الْقَبْرِ که چرے دے څه په ځائے دَدے قبر والا (نو ښۀ مړه به خه وے) وَلَيْسَ بِهِ الدِّيْنُ اَو نه به وى په دۀ باندِ قرض اِلَّا الْبَلَاءُ مګر وى به په دۀ باندِ مصيبت .

مسلم (١٥٧) ابن ماجه (٤٠٣٧) مشكاة (٥٤٤٥).

١٠ (٢٦٦) — يُوْشِكُ اَنْ يَأْتِيَ نزدے دۀ چه رابه شي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ په خلقو باندِ يو داسے زمانه لَا يَبْقٰى مِنَ الْاِسْلَامِ چه باقى به پاتے نه شي د اسلام نه اِلَّا اِسْمُهٗ مګر نښ نوم دهغه

---

[1] اَلْقَى الشَّيْءَ : څه څيز اچول . اُلْقِيَ فِيْهِ الشَّيْءُ : څه څيز کيښودل . په قرآن مجيد کښې دى چه : وَاَلْقَيْتُ عَلَيْكَ مَحَبَّةً مِّنِّيْ (سورة الطه ٢٠ : ٣٩) او ما په تا باندِ د خپل طرف نه مينه واچوله . لَقِيَ (باب سمع) لِقَاءً : ملاقات کول .

[2] شَحَّ (باب نصر وضرب) شُحًّا . شَحَّ بِهٖ ، شَحَّ عَلَيْهِ : مشو مىتيا کول . شَحِيْحٌ : شوم ، بخيل ، کنجوس

[3] تَمَرَّغَ : په خاوره وکښې لوټى يدل . مَرِغَ (باب سمع) مَرَغًا . مَرِغَ عِرْضُهٗ : دهغه په عزت داغ اولګيدۀ .

وَلَا يَبْقَىٰ مِنَ الْقُرْآنِ او باقي به پاتې نه شي د قرآن نه إِلَّا رَسْمُهُ[۱]
مګر نقش ليکل (يا: لوستل) د ده مَسَاجِدُهُمْ عَامِرَةٌ[۱] د هغوی
جماتونه به آباد وي وَهِيَ خَرَابٌ[۲] او حال دا دے چه هغه به شاړ
دي مِنَ الْهُدَىٰ[۳] د هدايت نه عُلَمَاؤُهُمْ شَرُّ مَنْ د هغوی
عالمان به د ډيرنا کاره وي د هغه چا نه تَحْتَ أَدِيمِ السَّمَاءِ[۴] چه د
اسمان د ځمکې لاندې دي مِنْ عِنْدِهِمْ د هغوی د خوا نه به تَخْرُجُ
الْفِتْنَةُ فتنه راوزي وَفِيهِمْ تَعُودُ او هم هغوی ته به واپس
کيږي.

الکامل في ضعفاء الرجال ۴: ۱۵۴۳، شعب الايمان ۲: ۳۱۱ (۱۹۰۸)۔ مشکاة (۲۷۶)
د دے دواړو په سند کښې عبد الله بن دکين نومے راوی موجود دے.
او د هغه په باره کښې د جرح و تعديل د عالمانو اختلاف دے. امام ابو حاتم وائي
په احاديثو کښې ضعيف دے او منکر روايتونه بيانوي. (الجرح والتعديل ۵: ۴۹)
امام ابن معين وائي، هغه ډير زيات بيکاره نه دے (تهذيب الکمال
۱۴: ۳۷۰)

حافظ ابن حجر وائي ريښتينے دے خو خطا کيږي. (الميزان ۲: ۳۲۵).

۱۱ (۲۶۷) يَكُونُ دي به فِي آخِرِ الزَّمَانِ په آخره زمانه کښې أَقْوَامٌ څه
داسے قومونه إِخْوَانُ[۵] الْعَلَانِيَةِ[۶] په ظاهر کښې به رونړه وي

---

[۱] عَامِرَةٌ: آباد، ډولې، مزين، منقش. عَمَرَ (باب نصر) عَمْرًا: آبادول. عَمَرَ الْمَنْزِلُ بِأَهْلِهِ: کور په کوربنو ودان شو.

[۲] خَرَابٌ: خَرِبَ (باب سمع) خَرَبًا وخَرَابًا: وران يدل. خَرِبَ الْبَيْتُ: کور وران شه.

[۳] الْهُدَىٰ: هدايت، لارموندل. دا لفظ مذکر هم استعماليږي او مؤنث هم.

[۴] أَدِيمٌ: جمع ئے أَدَمٌ، آدِمَةٌ او آدَامٌ دي: د ځمکے او د اسمان ظاهري حصه.

[۵] إِخْوَانٌ: د أَخٌ جمع دے: رور. أَخَا (باب نصر) أُخُوَّةٌ: دوست کيدل، رور کيدل.

[۶] الْعَلَانِيَةِ: ظاهر، ښکاره. عَلَنَ (باب نصر، ضرب، سمع، کرم) عَلَنًا وعَلَانِيَةً: ظاهريدل.

اَعْدَاءُ السَّرِيْرَةِ خو پټ به د شمنان وي فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ
نو او وئيلی شو چه اے د الله رسوله وَكَيْفَ يَكُوْنُ ذٰلِكَ او دا
کار به څنګه وی ؟ قَالَ هغوئ او فرمائيل ذٰلِكَ بِرَغْبَةِ بَعْضِهِمْ
دا د بعضو د لالچ (حرص) د وجے اِلٰى بَعْضٍ چه د بعضو نه به ئے کوی
وَرَهْبَةِ بَعْضِهِمْ او د بعضو د ويرے د وجے مِنْ بَعْضٍ د بعضو نه۔

مسند احمد ۵ : ۲۳۵ ، المعجم الاوسط (۲۳۷) ، مشكاة (۵۳۳۰)

امام طبرانی وائی ، د دے په روايت کولو کښی اُبوبکر (بن عبد الله) بن ابی
مريم منفرد دے (المعجم الاوسط ۱ : ۲۷۲) د دے راوی په حقله حافظ ابن
حجر ليکی ، چه دے ضعيف دے ۔ په کور ئے د اکه اچولے شوے وه او
د هغې نه روستو ذکر د د اختلاط شو ۔ (التقريب التهذيب ص : ۳۹۶)

۱۲ (۲۶۸) — يَذْهَبُ الصَّالِحُوْنَ الْاَوَّلُ فَالْاَوَّلُ نيکان (خلق) به يو بل پسے
(د دنيا نه) لاړ شی وَتَبْقٰى حُفَالَةٌ او لتش بهوس به پاتے شی
كَحُفَالَةِ الشَّعِيْرِ وَالتَّمْرِ د کهجورو او د وربشو د بهوسو غوندے
لَا يُبَالِيْهِمُ اللّٰهُ بَالَةً الله تعالیٰ به د هغوئ هيڅ پرواه نه ساتی ۔

بخاری ۵ : ۱۵۲ ، ۸ : ۱۱۴ ، مشكاة (۵۳۶۲)

---

۱ اَعْدَاءُ ، د عَدُوٌّ جمع ده : دشمن ۔ عَدَا (باب نصر) عَدْوًا ، عَدَا عَلَيْهِ : په چا باندی ظلم
کول ، چا سره دشمنی کول ۔

۲ اَلسَّرِيْرَةُ : باطن ، پټ څيز ۔ هُوَ طَيِّبُ السَّرِيْرَةِ ، د هغه باطن خه دے ، زړه ئے صفا دے ۔ جمع ئے
سَرَائِرُ ده ۔

۳ رَهِبَ (باب سمع) رَهْبَةً ، رُهْبًا : ويريدل ۔

۴ حُفَالَةٌ ، (بضم الحاء) رَدِّی ، بهوس ، کم قيمته ، د غورزولو څيز ۔

۵ اَلشَّعِيْرُ ، وربشه ۔ واحد ئے شَعِيْرَةٌ ده ، بله جمع ئے شَعِيْرَاتٌ ده

۱۳ (۲۶۹) — لَاتَقُوْمُ السَّاعَةَ نه به قائمیږي قیامت حَتّٰی یَکُوْنَ تر دې
پورې چه شي به اَسْعَدَ النَّاسِ زیات نصیب دار د خلقو نه بِالدُّنْیَا
د دنیا دارئ په معامله کښې لُکَعَ ابْنُ لُکَعٍ[۱] رزیل د رزیل ځوئ۔

ترمذی (۲۲۰۹)، مسند احمد ۵ : ۳۸۹، التاریخ الکبیر ۷ : ۹۶، دلائل النبوة للبیهقی ۶ : ۳۹۲، مشکاة (۵۳۶۵)۔

۱۴ (۲۷۰) — یَاْتِیْ عَلَی النَّاسِ زَمَانٌ په خلقو به یوه داسې زمانه راشي
اَلصَّابِرُ فِیْهِمْ چه وي به ټینګید ونکے په هغوي کښې عَلٰی دِیْنِهٖ په
خپل دین باندې کَالْقَابِضِ عَلَی الْجَمْرِ[۲] په شان د نیوونکي د سرو ټکے

ترمذی (۲۲۶۰)، مشکاة (۵۳۶۷)۔

۱۵ (۲۷۱) — یُوْشِکُ الْاُمَمُ نزدې ده چه مختلفې قامونه اَنْ تَدَاعٰی[۳] یو
بل را او بلي عَلَیْکُمْ ستاسو په خلاف کښې. کَمَا تَدَاعَی الْاَکَلَةُ
لکه چه رابلي کنږحوړ ونکي یو بل اِلٰی قَصْعَتِهَا[۴] خپلې کاسې ته فَقَالَ
قَائِلٌ نو یو ویونکي اوویل ، وَمِنْ قِلَّةٍ نَحْنُ یَوْمَئِذٍ ایا دا به
په دغه ورځ ځونګ د کم والي د وجې وي. قَالَ هغوئ اوفرمائیل بَلْ
اَنْتُمْ یَوْمَئِذٍ کَثِیْرٌ نه، بلکه تاسو به په دغه ورځ ډیر زیات یئ
وَلٰکِنَّکُمْ غُثَاءٌ[۵] لیکن تاسو به خارشلاکے یئ

---

۱ لُکَعُ : (بضم اللام وفتح الکاف) : رزیل، حرامی۔ چه کله معرفه استعمال شي نو بیا غیر منصرف وي.
۲ اَلْجَمْرُ : جمع دے د جَمْرَةٌ : انګار، شړ وټکه۔
۳ تَدَاعٰی : د باب تفاعل نه فعل مضارع دے یو د ت .. تر نه محذوف ده : یو بل رابلل۔
۴ قَصْعَة : (بفتح القاف) : کنډول، کاسه۔ جمع ئے قِصَعٌ، قِصَاعٌ او قَصَعَاتٌ راځي۔
۵ غُثَاءٌ : (بضم الغین المعجمة وتشدید الثاء وتخفیفها) : زګ، کباړ، خارشلاکے، خاورې، خځلې
غَثَا (باب نصر) غَثْوًا۔ غَثَا الْوَادِیْ : میدان د خاورو وخځلو نه ډک شه۔

كَغُثَاءِ السَّيْلِ په شان د خاښلاک د سيلاب وَلَيَنْزِعَنَّ اللهُ
او خامخا لرې به كړي الله تعالىٰ مِنْ صُدُوْرِ عَدُوِّكُمْ ستاسو د
دشمنانو د زړونو نه اَلْمَهَابَةَ مِنْكُمْ ستاسو ويره وَلَيَقْذِفَنَّ
او خامخا وابه چوي فِيْ قُلُوْبِكُمُ الْوَهْنَ ستاسو په زړونو كښې
كمزوري (بزدلي) قَالَ قَائِلٌ يو ويونكي اووئيل يَا رَسُوْلَ اللهِ اے
د الله رسوله مَا الْوَهْنُ بزدلي څه ده؟ قَالَ هغوئ اوفرمائيل حُبُّ
الدُّنْيَا د دنيا سره مينه كول وَكَرَاهِيَةُ الْمَوْتِ او مرګ بد ګنړل.

ابوداؤد (۴۲۹۷)، مسند احمد ۵ : ۲۷۸، حلية الاولياء ۱ : ۱۸۲
تهذيب تاريخ دمشق الكبير ۶ : ۳۷۰، المعجم الاوسط (۲۱۱۱) مشكاة
(۵۳۶۹).

(۲۷۲) ۱۶ — لَا تَقُوْمُ السَّاعَةُ نه به قائميږي قيامت حَتّٰى يَخْرُجَ قَوْمٌ
ترڅو چه پيدا به شي يو داسے قوم يَأْكُلُوْنَ بِأَلْسِنَتِهِمْ چه هغوی
به خوراک کوي په خپلو ژبو كَمَا تَأْكُلُ الْبَقَرَةُ لكه چه غوا كانے
خوراک كوي بِأَلْسِنَتِهَا په خپلو ژبو.

مسند احمد (۱۷۵۱، ۱۷۶، ۱۸۴)، شرح السنة ۲ : ۳۶۸، مصابيح السنة
(۳۷۳۴)، مشكاة (۴۷۹۵).
ملا علي قاري الحنفي. امام تورپشتي نه نقل كوي چه دا يو ضرب المثل
دے او مطلب ئے دا دے چه لكه څنګه يوه غوا په شنه ګيا او ازغي كښې فرق

---

له السَّيْلُ : سيلاب - جمع ئے السُّيُوْلُ دے.
ك هَابَ ، (باب سمع) هَيْبَةً وَمَهَابَةً : ويره كول ، ويريدل.
ك قَذَفَ ، (باب ضرب) قَذْفًا : اچول ، غورزول.
ك اَلْوَهْنُ : كمزوري ، بزدلي ، سستي. وَهَنَ (باب ضرب) سمع ، كرم) وَهْنًا : كمزورے كيدل.

نه شي کولے او نه په خوړک او تریخ کښې فرق کولے شي. ... نبي
خپله خیټه ډ ... کړي. بلکل د اخلاق به هم دغه شان د حق او باطل او د
حلال او حرام مابین کښې فرق نه کوي. سمّاعون للکذب اکّالون للسحت
(مرقاة المفاتیح ۸ : ۱۵۵)

۱۷ (۲۷۳) — یَأتِي عَلَی النَّاسِ زَمَانٌ رابه شي په خلقو یوه داسے
زمانه لَا یُبَالِي المَرْءُ چه هیڅ پرواه به نه کوي هیڅوک مَا أَخَذَ
مِنْهُ دغه څیزپه باره کښې چه حاصل کړے وي. (دد دنیا نه)
أَمِنَ الحَلَالِ چه ایا د حلالو نه ئے حاصل کړے دے أَمْ مِنَ
الحَرَامِ او که نه د حرامو نه.

بخاري ۳ : ۱۷، مشکاة (۲۷۶۱)

۱۸ (۲۷۴) — إِنَّ مِنْ أَشْرَاطِ السَّاعَةِ یقیناً د قیامت د نښو نه (یوه
دا هم ده) أَنْ یَتَدَافَعَ[1] چه په یو بل به ذمه داري وړاچوي
أَهْلُ المَسْجِدِ یو جماعت والا لَا یَجِدُونَ إِمَامًا مخوي به
یو (داسے) امام نه مومي یُصَلِّي بِهِمْ چه دوي له مونځ ورکړي

ابوداؤد (۵۸۱) ابن ماجه (۹۸۲) مشکاة (۱۱۲۴) مسند احمد ۶ : ۳۸۱
دد دے روایت سند کمزورے دے ځکه چه عقیلة الفزاریة نوےراویة
ده پکښې چه د علي بن غراب نیاده. حافظ ذهبي هغې ته مجهولة وائي. او
هم دا روایت د هغې د ضعیف والي په دلیل کښې پیش کوي (میزان الاعتدال
۳ : ۸۹)
حافظ ابن حجر هم دے زنانه په حقله وائي: لایعرف حالها. (لسان المیزان ۹ : ۵۲۸)

---

[1] تَدَافُعٌ، په یو بل ذمه واري اچول، یو بل ذمه وار کول او په خپله د ذمه وارۍ نه ځان خلاصول
عرب وائي: ضَیْفٌ یَتَدَافَعُهُ الحَيّ: یو داسے میلمه چه د قبیلے خلق ئے بل ته شپاري
او خپله دغه میلمستیا نه کوي.

۱۹ (۲۷۵) ـــ إِنَّ مِنْ اَشَدِّ اُمَّتِیْ یقینا ځیات سخت ځما په امت کښې لِیْ حُبًّا ماسره د مینې په اعتبار نَاسٌ (هغه) خلق دي یَكُوْنُوْنَ بَعْدِیْ چه ځما نه روستو به (پیدا) کیږی یَوَدُّ اَحَدُهُمْ غواړی به یو تن دهغوی لَوْرَاٰنِیْ چه کاش ما او وینی بِاَهْلِهٖ وَمَالِهٖ د خپل اهل او مال په بدل کښې۔

مسلم (۲۸۳۲)، مسند احمد ۵: ۱۵۶، ۱۷۰، مصابیح السنة (۴۹۲۷)، مشکاة (۶۲۸۴)۔

د صحیح مسلم او مصابیح السنة د روایت په ابتداء کښې «إِنَّ» نیشته او د مسند احمد حدیث کښې «إِنَّ» او «مِنْ» دواړه نیشته۔

۲۰ (۲۷۶) ـــ إِنَّهُ سَيَكُوْنُ یقینًا خامخا وی به فِیْ اٰخِرِ هٰذِهِ الْاُمَّةِ په آخر د دے اُمت کښې قَوْمٌ (یو داسے) قوم لَهُمْ چه وی به دهغوی د پاره مِثْلُ اَجْرِ اَوَّلِهِمْ په شان د اجر د اوّل د دے (اُمت) يَاْمُرُوْنَ هغوئ به حکم کوی بِالْمَعْرُوْفِ د شریعت د فرمان بردارئ وَيَنْهَوْنَ او منع کول به کوی عَنِ الْمُنْكَرِ د غیر شرعی څیزونو نه وَيُقَاتِلُوْنَ او هغوی به جنګ کوی اَهْلَ الْفِتَنِ د فتنو والو سره۔

دلائل النبوة للبیهقی ۶: ۵۱۳، مشکاة (۶۲۸۰)

۲۱ (۲۷۷) ـــ لَيَاْتِيَنَّ خامخا راځی به عَلَى النَّاسِ په خلقو باندې زَمَانٌ یو (داسے) زمانه لَا يَنْفَعُ فِيْهِ چه فائده به نه ورکوی په هغې (زمانه) کښې (هیڅ څیز) اِلَّا الدِّيْنَارُ وَالدِّرْهَمُ مګر دوپئ او اشرفئ۔

مسند احمد ۴: ۱۳۳، مجمع الزوائد ۴: ۶۵، مشکاة (۲۷۸۴)

۲۲ (۲۷۸) ـــ صِنْفَانِ دوه قسمه (خلق) دی مِنْ اَهْلِ النَّارِ د اور والو نه

لَمْ أَرَهُمَا ماهغه دواړه لیدلي نه دي (اخو الله ده ځوی د حاله خبر کړے یم) قَوْمٌ یو داسے قوم دے مَعَهُمْ سِيَاطٌ[1] چه دهغوی سره چابکونه دي كَأَذْنَابِ الْبَقَرِ[2] د غواوو د لکو په شان يَضْرِبُونَ بِهَا النَّاسَ په هغے باندِ خلق وهی وَنِسَاءٌ او بل داسے ښځے دی كَاسِيَاتٌ[3] چه جامے اغوستلے دی عَارِيَاتٌ[4] (خو د هغے باوجود) بے پردے دی مُمِيلَاتٌ[5] ماتله کوونکی دی (پردو سړو له خپل ځان طرف ته) مَائِلَاتٌ[6] (خپله هم) مائله کیدونکی دی (پردو نارینو ته) یا، نازنخره سره کرځیدونکی دی رُؤُسُهُنَّ[7] دهغوی سرونه كَأَسْنِمَةِ[8] الْبُخْتِ[9] الْمَائِلَةِ داوښو وښتوبو والو اوښانو د ککید ونکو قوبونو غوندِ دی. لَا يَدْخُلْنَ الْجَنَّةَ دوی به جنّت ته نه ورداخلیکی (په دخول اولی سره)، وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا[10] او نه به موندی دوی بُوی د دے (جنّت تر ډیر زمانے پورے) وَإِنَّ

---

۱ے سِيَاطٌ : د سَوْطٌ جمع ده - : چابک، کوړا، هنتر. ۲ے أَذْنَابٌ : د ذَنَبٌ جمع دے : دخاروی لکۍ
۳ے كَاسِيَاتٌ : د كَسِيَ نه دی : اغوستل، كَسِيَ (باب سمع)، كَسَا -
۴ے عَارِيَاتٌ، د عَرِيَ نه دے : بربنډیدل، بے پردے کیدل. عَرِيَ (باب سمع) عُرْيَةً، مِنْ ثِيَابِه.
۵ے مُمِيلَاتٌ : د أَمَالَ نه دے : یل طرف ځان ته مائله کول، تیتول.
۶ے مَائِلَاتٌ، د مَالَ نه دے. مَالَ (باب ضرب) مَيْلًا و مَيَلَانًا : تیتیدل، مَالَ فِي الْمَشْيِ : په ناز او نخرو تلل -
۷ے رُؤُوسٌ : سرونه، د رَأْسٌ جمع ده - أَرْؤُسٌ، رُؤُسٌ او أَرَاسٌ هم د رَأْسٌ جمع دی.
۸ے أَسْنِمَةٌ (بالفتح) د سَنَامٌ جمع ده. اوچت او اعلیٰ څیز ته وئیلے شی : قب. فُلَانٌ سَنَامُ قَوْمِهِ : فلانے په خپل قوم کښی اعلیٰ دے، لوړ دے، مشر دے.
۹ے اَلْبُخْتُ : اوکود سست والا اوښ.
۱۰ے رِيحٌ : بُوی، خوشبوی د الفظ مؤنث استعمالیکی. جمع ئے أَرْيَاحٌ، رِيَاحٌ او رِيَحٌ ده جمع الجمع ئے أَرَادِيحُ او أَرَايِيحُ راځی.

رِيحَهَا او يقيناً خامخا بوي دَ (جنت) لَتُوجَدُ خامخا مونده شي مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا د ډېر لرې ځايه.

مسلم (۲۱۲۸)، المعجم الاوسط (۹۳۲۷)، مشكاة (۳۵۲۴)

حافظ ابن كثير دمشقي وائي چه: دا ډله رجاله او جاندارمه (د پوليس محكمه) ده چه: بې ګناه خلق تنګوي. او دا سې بنځې دي چه جامې ئې اغوستې دي خو پټيكي پكښې نه. بلكه په هغه جامو كښې ئې د وجود نمائش ډېر زيات كيږي. ګڼې د ګېډو اښے دي او ږدي سري خپل طرف ته مائله كوي (البداية والنهاية ۶: ۲۸۶)

۲۳ (۲۷۹) — إِنَّ اللّٰهَ يقيناً الله تعالىٰ لَا يَقْبِضُ الْعِلْمَ نه قبض كوي علم انْتِزَاعًا[2] په راښكلو سره يَنْتَزِعُهُ مِنَ الْعِبَادِ[3] چه راښكي ئې د بندګانو نه وَلٰكِنْ يَقْبِضُ الْعِلْمَ ليكن قبض كوي علم بِقَبْضِ الْعُلَمَاءِ په مړه كولو د علماؤ حَتّٰى إِذَا لَمْ يُبْقِ عَالِمًا تر دې پورې چه هيڅ عالم به پاتې نه شي اتَّخَذَ النَّاسُ جوړ به كړي خلق رُءُوسًا جُهَّالًا بې علمه مشران فَسُئِلُوا لو هغوي نه به تپوس نه كولې شي فَأَفْتَوْا[4] لو هغوي به فتوې وركوي بِغَيْرِ عِلْمٍ بغير د علم نه فَضَلُّوا لو هغوي به پخپله هم

---

[1] مَسِيرَةٌ: مصدر دې: مسافت، مزل. سَارَ (باب ضرب) سَيْرًا وَمَسِيرًا: تلل، سفر كول

[2] اِنْتَزَعَ، اِنْتِزَاعًا. اَلشَّيْءَ: يو څيز راخكل، را اوباستل - د جرړې نه را ويستل. لازم هم استعماليږي او متعدي هم. نَزَعَ (باب ضرب) نَزْعًا - نزع الشيئ من مكانه -

[3] اَلْعِبَادَ: (بكسر العين) د عَبْدٌ جمع ده: بنده، انسان، مريې، عاجز. عَبَدَ (باب نصر) عِبَادَةً بندګي او عبادت كول. عَبُدَ (باب كرم) عُبُودَةً: مريې كيدل، غلام جوړيدل -

[4] اَفْتٰى اِفْتَاءً: فتوې وركول. فتوې وركونكي ته مفتي وئيلې شي. او څوك چه فتوې طلب كوي هغه ته مستفتي وئيلې شي -

